

د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب
# د انګلیسي ژبې د تدریس لارښود
# پنځم ټولګی




د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش.

د انګلیسي ژبې د تدریس لارښود پنځم ټولګی





unicef
د هر ماشوم لپاره
برای هر طفل



- د سرمؤلف مرستیال جمشید زینل.
- معاون مؤلف امین "دانش".
- د سرمؤلف مرستیال غلام ربانی لودین.

**علمي او مسلکي اډیټور**

- د سرمؤلف مرستیال جمشید زینل.

**د ژبې اډیټور**

- سرمؤلف امین الله نژند

**دیني، سیاسي او فرهنګي کمیټه**

- محمد آصف کوچی

**د څارنې کمېټه**

- دکتور اسدالله محقق جهانی د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین،
- دکتور شېرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې رئیس،
- دکتور محمد یوسف نیازي د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست سرپرست.

**کمپوز او ډیزاین**

- امید الرحمن (صدیقي)

**د چاپ د سمون چارې**

- محمد کبیر حقمل دپو د نشراتو او اطلاعاتو رییس



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچي يې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي — پاميريان، نورستانيان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ايماق، هم پشه يان

دا هيواد به تل ځليږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سينه کې د آسيا به — لکه زړه وي جاويدان

نوم د حق مودی رهبر — وايو الله اکبر وايو الله اکبر

# د پوهنې د وزیر پیغام

د لوی خدای ډېر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پرګاڼه یې سمبال کړ. ډېر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی او د رحمت، لاربښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی دی.

ښووځخه او روزڅخه په هره ټولڅخه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابوڅخه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل، دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابوڅخه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادوڅخه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړوي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښخخه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښايي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابوڅخه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوې موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکي دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهی په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستاڅخه هیله لرم چې د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصاڅخه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برى د خلکو له جدي مرستو پرته امکان څخه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه وڅخه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، منڅخه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهرباني له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. اڅخه سمیع قریب مجیب.

د پوهنې وزیر

دوکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

# Unit one
## Review
## Lesson one

**مخونه:2-4**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکې دوی څپرکی په پای کې وکولای شی:**

**۱- په انګلیسی ژبه واوری، ووائی غوږ ونیسی او وئي لولی.**

**۲- د څلورم ټولګی د لغاتونو پر ذخیری تکرار.**

1- زده کوونکي د نویو کلمو په معنا او مفهوم پوه شي.

2- په انګلیسي ژبه خبری اترې وکولای شي.

3- د دې لوست کلمې او موضوع ګانې پخپلو خبرو اترو او لیکلو کې وکارولی شي.

**د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه نفري

**د لوست مرستندویه توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ښاغلی ښوونکیه! د سلام او روغبړ څخه وروسته خپل ځان زده کوونکو ته ورو پیژنئ او له هغوی څخه وغواړئ چې خپل ځانونه معرفي کړي. د انګلیسي ژبې د زده کړې وروسته او دهغې د اهمیت په هکله هغوی ته توضیحات ورکړئ.

د انګیزې د پیداکیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- ویلای شئ څه وخت چې له غرمې څخه مخکې له چا سره مخامخ شئ څه وایئ؟
- څوک ویلای شي چې د سپی کلمې ته په انګلیسي کې څه وائي؟
- هغه کلمې چې د څلورم ټولګې څخه ستاسو په یادوي ځیني ووایئ؟

- د 3 مخ د دیالوګ برخه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته له هغې له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو دیالوګ د خپل نږ دې ملګري سره په کراره تمرین کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو ډیالوګ په لوړغږ ولولي او تاسې هم د هغو سره د سختو کلمو په تلفظ کولو کې مرسته او ملګرتیا وکړئ. وروسته یو ځل بیا دیالوګ په لوړغږ ولولئ او بیا یې معنا کړئ.
- زده کوونکي په دوه ډلووویشئ ترڅو د Let’s practice برخه پخپلو کې پوره او بشپړې کړي. وروسته له هغې له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړئ چې تمرین په لوړغوږ ولولي او تش ځایونه په صحیح توګه ډک کړي او تاسې له هغوی سره مرسته او ملګرتیا وکړئ.

- د فلش کارتونو په ښودلو او یا د کتاب د انځورونو په ښو دلو سره له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د 4 مخ Vocabulary د برخې د انځورونو نومونه ولیکي. په هغهصورت کې چې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته ورسره وکړئ.
- د 4 مخ دB د برخې دانځورونو نومونه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې انځورونو ته وګوري او له تاسې وروسته ئي تکرارکړي وروسته له هغه زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو د انځورونو نومونه په لوړغږ ولولئ. وروسته له زده کوونکو څخه وغوری چې کلمی د انځورونو سره پرتله کړی.

**ارزونه:**

هغه پوښتنی چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

1- پیشو ته په انګلیسي کې څه وایي؟

2- د Dog او Goat کلمې په پښتو معنا کړئ؟

3- آیا مونږ په افغانستان کې Queen لرو؟

4- څوک کولای شئ لاندې جمله په پښتو وژباړئ؟

Do you need any help?

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نني لوست کې د څلورم ټولګي تېر لوستونه تکرار کړل

**کورنی دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 3 مخ د محاورې برخه پخپلو کتابچو کې ولیکي.

## Unit one
## Review
## Lesson two

**مخونه:6-5**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

زده کوونکی ددی لوست په پای کې وکولای شي.

1- زده کوونکي د تېرو لوستونو په کلمو باندې پوه شي او هغه سم ولیکلای شي

2- د انځورونو نومونه د کیسی(معما) په جدول کې پیدا کړای شي.

3- د دې لوست کلمې او موضوع ګانې پخپلو ورځینو خبرواترو او لیکلو کې وکارولای شي او ګټه ترې واخلي.

**د تدریس میتودونه:**ډله ییز ځانګړی او ډلزائیز

**د لوست مرستندویه توکي**: فلش کارت، تخته او تباشیر

| **فعالیتونه:** تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ.<br>- د Good morning اصطلاح څخه دورځې په کوم وخت کې ګټه اخلئ؟<br>- د Queen, dog, cat, goat د کلمو معنا په شفاهيٍ توګه ووایئ؟<br>د انګیزې د پیداکیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.<br>د نوي لوست په اړه یوه په زړه پوری کیسه زده کوونکو ته وکړئ.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د Fun with words د برخې بی ترتیبه کلمې د خپل نږدې ملګري سره په ترتیب شوو کلمو تبدیلې او جوړې کړئ. وروسته له څوتنو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او یوه یوه بې ترتیبه کلمه په ترتیبي توګه پر تخته ولیکي. په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطی وکړي وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کتاب ده ۸ مخ د B د برخې د کلمو سپیل یا هیجا په سمه توګه پخپلو کتابچو کې ولیکی. وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه کلمه د تختی پر مخ ولیکی په هغه صورت کې  چې یو له زده کوونکو *نه* غلطي وکړي وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو د کتاب د شپږم مخ کیسی( معما) په دوه یاڅو نفری کسیز توګه پخپلو کې کار وکړی او له هغوی څخه وغواړئ ترڅو د تورو په جدول کې د ور کړل شویو انځورونو نوموڅخه پیدا کړي. وروسته د هرې ډلې څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه کلمه په لوړغږ ولولي او د تورو په جدول کې ئې یې نورو زده کوونکو ته وروښایي په هغه صورت کې چې یو له ډلو څخه غلطي کړي |
|---|

وی وخت بلې ډلې ته ورکړئ.

**ارزونه:**هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي.

1- آیا د Ogat د کلیمې سپیل یا توري په سمه توګه لیکل شوي دي؟

2- کیسی یا(معما) ته په انګلیسي کې څه وایي؟

3- آیا مونږ په افغانستان کې Van ته څه وایو؟

4- څوک کولای شي د Nest کلمه په پښتو معنا کړي؟

**د لوست لنډیز:**تاسې په ننني لوست کې د څلورم ټولګي د کتاب تېر لوستونه تکرار کړل.

**کورنی دنده:**زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د دې لوست کلمې پخپلو کتابچو کې ولیکي.

**کیسی( معما) حل:**

زمونږ د نظر وړ کلمی د رنګ آمیزۍ په توګه په نښه شوي دي.

Door, Umbrella, Egg, Lock, Car, Book, Star, Queen, Van, Orange, Jar

| F | D | E | L | J | Q | B | F | J | S | G |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| D | J | A | R | X | U | L | V | D | T | D |
| S | W | R | I | I | E | T | U | J | A | K |
| D | S | T | A | R | E | G | G | A | R | Q |
| G | Y | F | X | C | N | C | S | P | O | I |
| L | K | O | R | A | N | G | E | G | C | R |
| U | M | B | R | E | L | L | A | H | L | J |
| D | Z | J | E | R | V | A | N | Y | O | S |
| O | X | C | F | Y | U | L | E | T | C | R |
| O | A | A | C | B | O | O | K | U | K | E |
| R | F | R | V | B | M | N | S | F | S | W |

## Unit one

## Review
## Lesson three

**مخونه:7-8**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکي ددی لوست په پای کې وکولای شي.**

1- آسانه جملی وویلی او ولیکلی شي.

2- پخپلو منځونو کې د میوو او سابو په هکله پوښتنې وکړي او ځوابونه ورکړای شي.

3- د میوو او سابو نومونه پخپلو ورځنیو خبرواترو کې استعمال کړای شي.

**د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه کسیزه، پوښتنې او ځوابونه

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو کولو سره وارزوئ:

- څوک کولاي شي د House کلمه په سمه توګه ولیکي؟
- هغه کلمې چې د کیسی(معما) په جدول کې ترې ګټه اخیستل شوې وه ووایئ؟

د انګیزې د پیداکیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا په څلورم ټولګي کې مو د میوو په هکله کومی کلمی لوستلی دي؟ په یاد لرئ او مرته ګواتی دی
- آیا د Banana کلمه په سابو پوری اړه لري او شامله ده؟
- آیا Goat وحشي حیوان دی او که اهلي؟

- د 7 مخ د Reading د برخې جملې په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې څخه یې وروسته تکرار کړي وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله په لوړغږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کولو کې مرسته وکړئ.
- زده کوونکي په دوه کسیزو ډلووویشی ترڅو د کتاب د 7 مخ د Reading برخه یو له بل سره تمرین کړي د مثال په توګه : لومړی زده کوونکي دې د انګلیسي جملې ولولي او دویم زده کوونکي دې هغه وژباړي.
- زده کوونکي په دوه کسیز ډلووویشئ ترڅو د کتاب د 8 مخ د Fruits and vegetables برخه پخپلو کې کار وکړي د مثال په توګه لومړی زده کوونکي دې یو انځورته اشاره وکړي او دویم زده کوونکي دې د هغی نوم ووایي.

| |
|---|
| - زده کوونکي په دوه کسیز ډلوویشئ ترڅو د 8 مخ د B د برخې فعالیت تمرین کړي. د مثال په توګه: لومړی زده کوونکي یو انځور ته اشاره کوي او پوښتنه کوي چې What is this? دویم زده کوونکي انځورته ګوري او ځواب ورکوي...........It is a/a<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو خپلې کتابچې او قلمونه د Writing او Spelling د برخې د فعالیت د سرته رسولو لپاره تیار کړي. وروسته د کتاب د 8 مخ د A د برخې د څو انځورونو نومونه په لوړغږ ووایي او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو هغه پخپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- د زده کوونکو څخه په ځانګړی توګه وغواړئ ترڅو د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه کلمه پرتخته ولیکي. په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړي بل زده کوونکي ته غږ وکړئ چې هغه کلمه په سمه توګه ولیکي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنی چې باید له زده کوونکو څخه وشي.<br>1- د pear د کلمی معنا څه شی ده؟<br>2- منې ته په انګلیسې کې څه وایي؟<br>3- د دې جملی معنا څه شی ده؟.It is a radish<br>4- څوک کولای شي د څو ډولو سابو نومونه ووایي؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې د څلورم ټولګي تېر لوستونه تکرار کړل. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د میوو نومونه چې په څلورم ټولګي کې یې لوستلي دي پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit one
## Review
## Lesson Four

**مخونه:**9-10

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی ددی لوست په پاي کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي د بدن د غړو نومونه وپیژني.

2- کلمې له انځورونو سره مطابقت ورکړي او معنا یې کړای شي.

3- د بدن د غړو په هکله کلمې پخپلو ورځینو خبرواترو کې وکارولی شي.

**د تدریس میتودونه:**پوښتنې او ځوابونه- ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنې پوښتنو په مرسته وارڅي.

- څو ډوله میوې مو په تېر لوست کې زده کړې دي بیان یې کړئ؟
- آیا د ځینو میوو نومونه په انګلیسي کې ویلای شئ؟

د انګیزې د پیداکیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- پوزې ته په انګلیسي کې څه وایي؟
- د Lip کلمې ته په پښتو کې څه وایي؟
- آیا د خپل بدن د څو غړو نومونه مو په انګلیسی کې زده کړی دی؟

- د 9 مخ د Vocabulary د برخې کلمې په لوړغږ ووایئ او په عملي توګه یې زده کوونکو ته وروښایاست او وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو کلمې په دوه کسیزه توګه عملاً یو بل ته وروښایي او نومونه یې واخلي وروسته له هغوی څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه کلمه په لوړغږ ولولي.
- له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو د This is and these are د برخې فعالیت د ورکړل شوي مثال په ډول چې په کتاب کې موجود دی سرته ورسوي. لومړی تاسې ورکړل شوی مثال په عملي توګه هغوی ته وروښایاست په هغه صورت کې چې زده کوونکي ستونزې ولري له هغوی سره مرسته وکړئ.
- د کتاب د 10 مخ د reading د برخې جملې په لوړغږ ولولئ ویې ژباړئ او په عملي توګه یې زده

| |
|---|
| کوونکو ته وروښایاست او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره تاسی ته غوږ ونیسي.<br>– جملې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې له تاسو سره یو ځای تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه جمله په لوړغږ ولولئ.<br>– زده کوونکي په دوه کسیزو ډلوویشئ ترڅو د 10 مخ د Dialogue د برخې فعالیت د ورکړل شوي مثال په توګه یو له بل سره تمرین کړي. د مثال په توګه یوه زده کوونکي د خپل بدن یوغړي ته اشاره کوي او پوښتنه کوي چې ?What is this او دویم زده کوونکي ځواب ورکوي This is your these are your |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- آیا کولای شي د Head د کلمی معنا ووایي؟<br>2- څوک کولای شي دخپل بدن یو څوغړي په انګلیسي ووایي؟<br>3- آیا نننی لوست تاسوته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننی لوست کې د خپل بدن د غړو نومونه چې په څلورم ټولګي کې مو لوستي ؤ تکرار کړل. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د بدن د غړو نوموڅخه په انګلیسي ژبه پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

**Unit one**
**Review**
**Lesson five**

**مخونه:**11-12

**وخت:** يو درسي ساعت(45 دقيقې)

**موخې:**

**زده کوونکي ددې لوست په پاي کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي د کورنۍ شجره وپيژني.

2- د کورنۍ د غړو نومونه واخلي او د خپلې کورنۍ غړي وپيژني.

3- د کورنۍ د غړو په هکله کلمې په سمه توګه ولولي او هغه پخپلو خبرواترو او ليکلو کې په سمه توګه استعمال کړي.

نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:

**د تدريس ميتودونه:**سوال او ځواب؛ ځانګړې او ډله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

تېر لوست په لاندنيو پوښتنو کولو سره وارزوئ:

- د خپل بدن د غړو نومونه په انګليسي ووایاست؟
- آيا د بدن د غړو د کلمو نومونه په سمه توګه تلفظ کولای شئ؟

د انګيزې د پيداکيدو او د نوي لوست د زده کړې په هيله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آيا د خپلې کورنۍ په شجره پوهيږئ؟
- شجرې ته په انګليسي څه وايي؟
- د کورنۍ مشر او ريس چا ته ويل کيږي؟

- د کتاب د 11 مخ د My family د برخې کلمې او جملې په لوړغږ ولولئ او زده کوونکي دې په ځير سره غوږ ونيسي.
- کلمې او جملې يو ځل بيا په لوړغږ ولولئ او دا ځل له د زده کوونکو څخه وغواړو چې له تاسې وروسته يې تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې په لوړغږ ولولي اوويې ژباړي.
- د کتاب د 11 مخ د کلمو د جمع کولو برخه Plurals زده کوونکو ته تشريح کړئ. وروسته مفردې او د جمعې کلمې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځير سره غوږ ونيسی.
- کلمې يو ځل بيا په لوړغږ ولولئ او دا وار له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو کلمې له تاسې وروسته

تکرار کړي. وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ چې کلمي په لوړغږ سره ووايي.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 12 مخ Matching دبرخې موضوع په دوه کسیزه توګه پخپلو منځونو کې کار و کړي ترڅو د ښي خوا کلمې د کین خوا د لین د متراد فو کلمو سره پیدا کړي لومړی تاسې یو مثال له زده کوونکو سره په ګډه کار وکړئ.
- له ډلو څخه وغواړئ چې فعالیت په لوړغږ سرته ورسوي د مثال په توګه : لومړی زده کوونکي وې یوه کلمه د کین لین څخه ووايي او دويم زده کوونکي دې د هغې مترادفه بڼه ووايي په هغه صورت کې چې دويم زده کوونکي سمه کلمه و څخه شوه ویلای وخت دې بلې ډلې ته ورکړي.
- له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او د 12 مخ د Let's Spellد برخې یو نوم او د هغې جمع پرتختې .ولیکي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړي. وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې له زده کوونکو څخه وشي.

1- مورته په انګلیسي کې څه وايي؟

2- خور ته په انګلیسي کې څه وايي؟

3- څوک په انګلیسي ویلای شي چې د کورنۍ غړی یې څو تنه دي؟

4- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پوری ؤ؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نن‌ني لوست کې د کورنۍ غړي چې څلورم ټولګي پورې اړه درلوده تکرار کړل.

**کورنی دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د خپلې کورنۍ شجره پخپلو کتابچو کې ولیکي.

# Unit two
## Lesson one
In the classroom

**مخونه:** 13-15

**وخت:** يو درسي ساعت(45 دقيقې)

**موخې:**

**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:**

1- زده کوونکي خپل ټولګی وپيژني.

2- د ټولګي اړوند لارښوونی ولولي اوويې ليکلی شي.

3- پخپلو ورځنيو خبرواتروکې له لارښوونو څخه ګټه واخيستلای شي.

نوي لارښوونی

| | |
|---|---|
| کتاب مو وتړئ! | Close your book! |
| کتاب مو خلاص کړئ! | Open your book! |
| اتم مخ راواړوئ! | Turn to page 8! |
| 14 مخ ولولئ! | Read page 14! |
| د خپل ملګري سره خبرې وکړئ! | Talk to you partner! |
| غوږ ونيسئ! | Listen! |
| وليکئ! | Write! |
| تختې ته وګورئ! | Look at the board! |

**د تدريس ميتودونه:** د نقش لوبول، دوه کسيز او ډله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:** تېر لوست د لاندنيو پوښتنو په واسطه وارزوئ.

- د خپلې کورنی د شجرې شکل رسم
- د هغو کسانو نومونه چې ستاسي شجرې پورې اړه لري وليکئ؟

د انګيزې د پيداکيدو او د نوي لوست د زده کړې په هيله لاندې پوښتنې وکړئ.

آيا تر اوسه مو د ټولګی اړوند لارښوونی اوريدلی دی او څه ډول؟

آيا ستاسی په ښوونځی يو معياری ټولګی شته.

- ټولګی څه ډول يو ځای دی؟
- کومی لارښوونی بايد په يو درسی ټولګي کې سرته ورسيږی.

- په ټولګي کې کوم شیان موجود دي؟
- په ټولګي کې کوم کارونه سرته رسیږي؟

- د 14 مخ دیالوګ په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي.
- دیالوګ یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې دیالوګ د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي.
- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې دیالوګ په لوړغږ سره تمرین کړي او تاسې له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ.
- د کتاب 13 مخ د Lets learn some thing new د برخې لارښوونې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې تاسی ته په ځیر سره غوږ ونیسي
- اصطلاح ګانې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او دا وار له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې اصطلاح ګانې په لوړغږ ولولي او تاسې هم له هغوی سره مرسته وکړئ.
- د کتاب 14 مخ د Let's do it د برخې لارښوونې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي. وروسته له زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې یو یې لارښووڅخه ولولي او بل زده کوونکي په عملي توګه لارښوونه سرته ورسوي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړی ترڅو د کتاب 14 مخ د Let's practice more! د تمرین برخه په ځانګړې توګه سرته ورسوي او د هغوی څخه وغواړئ په هغو لارښوونو چې پوهیږي او د ټولګي پورېې اړه لري پخپلو کتابچو کې ولیکي. وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ هغه لارښوونې چې یې لیکلې دي په لوړغږ سره ولولي او تاسې ورسره د لارښوونو په لیکلو کې مرسته وکړی.

**ارزونه:** هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي.

1- د ټولګی اړوند لارښوونې کومې دي؟
2- د ټولګي په هکله څو ډول لارښوونو باندې پوهیږی؟
3- د نننۍ لوست څخه مو څه زده کړل؟
4- آیا نننی لوست تاسو ته په زړه پوری ؤ؟

**د لوست لنډیز:** تاسی په نننۍ لوست کې په ټولګي کې د لارښوونو په هکله ولوستل عبارت دي له:

| | |
|---|---|
| Turn to page! | Open your book! |
| Close your book! | Look at the board! |
| Listen! Write! | Talk to your partner! |
| Read page 14! | Read page 8! |

**کورنی دنده:** زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د تولګي لارښوونی پخپلو کتابچو کې ولیکي.

**Unit two**

**Lesson two**

**مخونه:16-17**

**موخې:**

**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولاي شي.**

**۱- متن ولوستلای شی،**

**۲- د متن مفهوم درک کړای شي.**

**۳- نوی کلیمی وپیژنی او دهغوپه معنا پوه شي.**

**۴- دا نځورنو له مخی لاربښوونی وپیژنی او په ورځنی ژوند کې تری ګټه واخلی.**

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:**Thank you تاسی څخه مننه Smiles خنداکول Enter ننوتلTeachesدرس ورکول او Love دوست لرل.

**د تدریس میتودونه:** دوه نفری وځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په واسطه وارزوئ:

- د ټولګي اړوند لاربښوونې وواياست؟
- ولې دلاربښوونو او لاربښودونو پوهيدل مهم دي؟

د انګیزې د پیداکیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- خپل ځان په انګلیسي معرفي کړي؟
- آیا تراوسه پورې مو یولنډ متن د خپل ټولګی په هکله لیکلی دی؟

- د کتاب د 15 مخ د Let's read د برخې متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړۍ ترڅو په ځیر سره متن ته غوږ ونیسي وروسته له زده کوونکو څخه په ځانکړی توګه وغواړئ چې متن په لوړغږ ولولئ.
- له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې متن له ځان سره په پټه خوله ولولي او هغه کلمې چې په معنا يې نه پوهيږي په نښه کړي وروسته يو ځل بيا متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د هغو کلمو په معنا چې ته پوهيږي وليکي.
- له زده کوونکو څخه د دوه کسيز ډلو په توګه: وغواړئ ترڅو د کتاب د 15 مخ Let's work together د برخې فعاليت په لوړغږ تمرين کړي. د مثال په توګه: يو زده کوونکي دی پوښتنه ولولي او دويم زده کوونکي دې د متن د معلوماتي برخې څخه په مرستې اخيستلو سره ځواب ورکوي لومړی پوښتنه له يوه زده کوونکي سره تاسې پخپله په عملي توګه سرته ورسوئ ترڅو زده کوونکي د دې

فعالیت د سرته رسولو په طریقه پوه شي.

- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د 15 مخ Let’s work together د برخې متن خپلو ځانونو سره په پټه خو له ولولي او د 16 مخ True or false د برخې فعالیت سرته ورسوي هغوی ته ووایئ چې سمې جملې د T او ناسمې جملې د F په تورو په نښه کړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه جمله په لوړغږ ولولي او ووایي چې سمه ده اویا ناسمه.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کتاب د 16 مخ Exercise د برخې لارښوونې له ځان سره په پټه خو له ولولي او د هر انځور اړوند لارښوونې وټاکي او دایره ترې تاوه کړي وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو د انځور لاندي لارښوونې په لوړغږ ولولي او سمې لارښوونې ووایې. که چیرې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړه وخت یو بل زده کوونکي ته ورکړئ.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

1- د ټولګي په اړه یوه لارښوونه ووایي.

2- په شفاهي توګه خپل ځان معرفي کړي.

3- د نننې لوست څخه موڅه زده کړل؟

4- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نننې لوست کې یو متن د In the classroom ولوست او د ټولګی په هکله مولارښوونې تکرار کړې.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي ته لارښوونه وکړئ چې د خپلو ځانونو په هکله یو لنډ متن پخپلو کتابچو کې ولیکې.

## Unit two
## Lesson three

**مخونه:** 17–18

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي.

1- د ټولګی لاربښوونې په سمه توګه ولولي.

2- د انځورونو لپاره لاربښوونې او لاربښود ولیکي.

3- کلمې په ښه توګه سپیل او هیجا کړي.

**دول پلی**

**د لوست لغتونه میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست دلاندنیو پوښتنو په ذریعه وارزوئ:

- څوک کولای شي خپل ځان په انګلیسي معرفي کړي؟
- آیا خپل یو ټولګیوال په انګلیسي معرفي کولای شئ؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- څوک کولای شي د خپل ټولګي به هکله یو لاربښود ولیکي؟

- د کتاب 17 مخ د Let's act د برخې لاربښوونې په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن ته په ځیر سره غوږ ونیسي. وروسته له زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ ترڅو لاربښوونې پخپلو منځونو کې تمرین کړي د مثال په توګه: یو زده کوونکي د Let's act د برخې یوه لاربښوونه لولی او دویم زده کوونکي د هغی عمل اجرا کوی.
- زده کوونکو ته لاربښوونه وکړی تر څو د 18 مخ د Writing د برخې انځورونوته وګوری او لاربښوونی ئي په کتابچو کې ولیکی وروسته له هغوی څخه په ځانګړی توګه وغواړئ چې یوه یوه لاربښوونه په لوړغږ سره ولولي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطه لیکنه کړې وه وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.
- زده کوونکو ته لاربښووڅخه وکړئ چې د 18 مخ Play with words د برخې کلمې د کتاب دلاربښوونو له مخې سمې بشپړې کړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي، یوه یوه کلمه د تختې پر مخ ولیکي، په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړه وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.

| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د ټولګي اړوند یوه لارښوونه په عملی توګه نورو زده کوونکو ورو پېژني؟<br>2- ایا ددې لوست لارښوونې په ورځنیو خبرواترو کې کار ولای شئ ؟ څرنګه<br>3- د نني لوست څخه موخه زده کړل؟<br>4- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
|---|
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په ننني لوست کې د تولګي اړوندې لارښوونی (لوستل او لیکل) تمرین کړل. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ټولګي اړوند لارښوونې له معناوو سره پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit two
## Lesson four

**مخونه:** 20-21

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي.

1- په انګلیسي کې د لوبو په نومونو پوه شي.

2- لوبې تمثیل کړای شي.

3- لنډ متن په سمه توګه ولولئ

4- د نویو کلمو په معنا پوه شي

5- نوې کلمې په ورځنیو خبرواتروکې استعمال کړي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:**

د رسۍ لوبی Hide and seek, skips د پټ پټوونکی لوبې، Throws پورته غورځولRun منډې وهل Kick په لغته وهل.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړې او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو کولو سره و ارزوئ.

- د ټولګي یو څو لارښوونې ووایي.
- د Write او Talk کلمی سپیل کړي.

د انګیزې پیدا کول دلاندنیو پوښتنو په واسطه وکړئ

- څوک کولای شي ووایي چې په ښوونځي کې کومی لوبې د کولو وړدي؟
- کومې لوبې ستاسې په ښوونځي کې ډېر رواج لري؟
- آیا سپورت یا ورزش ستاسې په اونیز مهال وېش کې شامل دي؟

- د Games we playد برخې جملې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي.
- جملې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو جملې له تاسې سره یو ځای تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې په لوړغږ ولولئ وروسته جملې یو ځل بیا ولولئ، معنا یې کړئ او په عملي توګه یې زده کوونکو ته وښایاست.
- د کتاب د 20 مخ د Reading د پرخې متن په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه

| |
|---|
| وغواړئ چې متن ته په ځير سره غوږ ونيسي.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن له ځان سره په پټه خو له ولولي او سختې کلمې پـه نښـه کړي. وروسته يو ځل بيا متن په لوړغږ ولولئ اوويې ژباړئ. وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې متن په لوړغږ ولولي او تاسې له هغوی سره د سختو کلمو په لوستلو کې مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د کتاب د 20 مخ True or false برخه ولـولي او کـه چيرې د جملو تش ځايونه سم وي د T او که ناسم وي د F په تـوري پـه ايښـودو سـره پـه نښـه کړئ. وروسته. له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې يوه يوه جمله په لـوړغږ سره ولولي او ووايي چې سمه وه يا ناسمه. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې بايد له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- ددې لوست لوبې په عملي توګه اجرا کړي.<br>2- په دې لوست کې موکوم شيان نوي او کومې لـوبې چـې پـه ښـوونځي کـې سـرته رسـيږي زده کړې؟<br>3- د نننې لوست څخه موڅه زده کړل؟<br>4- آيا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننې لوست کې د ښوونځي په هکله او هغه لوبې چې په ښوونځي کې اجرا کيږي زده کړل. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د محلي لوبو په هکله چې په ښوونځي کې اجرا کيږي يو لنډ مـتن پخپلو کتابچو کې وليکي. |

## Unit two
## Lesson five

**مخونه:**21-22

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي.

1- د لوبونومونه وپیژني او ویې لولي.

2- کلمې په سمه توګه سپیل کړي.

3- لنډې او آسانه جملې ولولې.

**ځانګړی**

**د لوست د تدریس میتودونه:**ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** خلاصه فضا، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په ذریعه وارزوئ.

- څو ډوله لوبې مو په تېر لوست کې زده کړې نومونه یې ووایئ.
- د تېر لوست د متن لنډ مفهوم بیان کړی.

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- ووایي لوبې له ښوونځي سره څه اړیکې لري؟
- له څو ډوله لوبو سره بلدیاست؟. د لوبو کولو د پاره کوم شیان اړین دی؟

- د کتاب د 22 مخ Look and read کلمې په لوړغږ سره ولولئ او زده کوونکي دې له تاسې څخه وروسته هغه تکرار کړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې کلمې په لوړغږ ولولي. وروسته له زده کوونکو څخه په دوه نفری توګه وغواړئ چې لومړی زده کوونکي دیوی لوبې نوم واخلي او دوهم زده کوونکي دې د هغې لوبې د سرته رسولو شکل په عملي توګه اجرا اوویې ښایي.
- زده کوونکو ته لارښووڅخه وکړی چې د 21 مخ Words scramblesبې ترتیبه کلمې په ترتیب سره ولیکي او د کلمو سم شکل په تشو ځایونو کې ولیکي، خو زده کوونکي دې په کتاب کې د خود کار قلم استعمالوي وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه کلمه دې پر تخته ولیکي په هغه صورت کې چې یو زده کوونکي غلطي وکړي وخت دې بل زده کوونکي ته ورکړي.
- د کتاب د 22 مخ Let’s read د برخې جملې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.

| - جملې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره يې يو ځای تکرار کړې وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې جملې په لوړغږ يې ولولي.<br>- له زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلـو پـه توګـه وغـواړئ چـې د 22 مـخ د Let’s read د برخـې فعالیت په بل ډول اجرا کړي مثلاً یو زده کوونکي ذې د یوې لوبې تمثیل وکړي او بـل زده کـوونکي دې د هغې جمله ووايي. |
|---|
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د څو ډولو د لوبو نومونه چې په دې لوست کې مو لوستلې دي نومونه يې واخلئ؟<br>2- د Pushing a cart جمله څه معنا ورکويي؟<br>3- آيا ننني لوست تاسې ته په زړه پوری و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نن‌ني لوست کې د ښوونځي د لوبوپه باره کې څه زده کړل؟ |
| **کورني دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکـړئ چـې د 23 مـخ د Let’s read د برخـې جملـې پخپلـو کتـابچو کـې ولیکي. |

# Unit three
## Lesson one

**مخونه:** 23-25

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي وکولای شي چې د ټولګي شیان وپیژني.

2- د ټولګي اړوندې کلمې ولوستلای شي.

3- د ټولګي په هکله کلمې پخپلو ورځنیو خبرواترو کې استعمال کړای شي او ګټه تری واخیستلای شي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:**سپینه تخته White boord نقشه Map ساعتClock میزdesk څوکۍ Chair تخته پاکEraser .

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړې او دوه کسیزه، پوښتنې او ځوابونه

**د لوست مرستندویه توکي:**فلش کارت ، د ټولګی شیان، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ:

- د ټولګي یو څو لارښوونی ووایي.
- کومې لارښوونې په ټولګي کې ډیرې استعمالیږي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- درسي تولګی د غیر درسي ټولګي سره څه توپیر لري؟
- د ټولګي اړوند وضروري شیانو نومونه واخلي؟
- آیا تخته او تباشیر د ټولګی اړینو شیانو څخه دي؟

- د 25 مخ دیالوګ په لوړغږ ولولئ او زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې ډیالوګ د خپل نږدی ملګری سره تمرین کړئ وروسته لـه څـو زده کوونکو څخه په ډوه نفری توګه وغواړئ چې دیالوګ په لوړغږ سره تمثیـل کـړي، وروسـته لـه هغـی دیالوګ یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 25 مخ Class objects د برخې انځورونوته وګوري او هغـه شیان چې معنوی یې پیژني یا په انګلیسي او یا په پښتو د هغو نومونه واخلی وروسـته د هغـو شـیانو چې انځورونه ئي ګوري د هغوی نومونه پر تخته ولیکي.
- د کتاب د 26 مخ د Let's learn something new د برخې کلمې په لـوړ غـږ ولـولئ او لـه زده

<table>
<tr><td>
کوونکو څخه وغواړئ چې په ځير سره غوږ ونيسي. او ستاسی نه وروسته ئي تکراريږي.<br>
وروسته زده کوونکو دنده ورکړی چې په دوه نفری توګه ئي تمرين کړی.<br>
- وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو کلمی په لوړغږ ولولئ او تاسی هم له هغوی سره دسختو کلمو په تلفظ او ويلوکې مرسته وکړئ او ټولې کلمې د لوست په پای کې يو ځل بيا ولولئ او معنا يې کړئ.<br>
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 25 مخ د Exercise برخه د سوال او ځواب په توګه د ټولګي د اړوند شيانو په هکله په دوه کسيز توګه تمرين کړئ د مثال په توګه له زده کوونکو څخه دې يو تن د ټولګې اړوند يو شي ته اشاره وکړي او پوښتنه دې وکړي چې:<br>
What is this? او دويم زده کوونکي ځواب ورکوي......It is, a/an
</td></tr>
<tr><td>
ارزونه:<br>
هغه پوښتنې چې بايد له زده کوونکو څخه وشي:<br>
1- د ټولګي اړوند شيان کوم دي؟<br>
2- آيا کولای شئ د Map د کلمې انځور خپل ښوونکې ته وښاياست؟<br>
3- آيا ننني لوست تاسې ته په زړه پوری و؟<br>
4- دننی لوست نه موځه زده کړی ووائی.
</td></tr>
<tr><td>
د لوست لنډيز:<br>
تاسی په ننني لوست کې د ټولګي د شيانو نومونه لکه White board, map, clock, board marker, desk, computer, eraser, او chair زده کړل
</td></tr>
<tr><td>
کورنی دنده:<br>
زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ټولګي په هکله د Let’s learn some thing new د برخې په هکله سوال وکړي او ځوابونه ورکړي او پخپلو کتابچو کې يې وليکي.
</td></tr>
</table>

## Unit three
## Lesson two

**مخونه:** 26-27

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي د ټولګي په اړوند و کلمو پوه شي.

2- د ټولګي اړوندې کلمې ولولي او ګټه ترې واخیستلی شي.

3- د ټولګي اړوندې کلمی پخپلو خبرواتروکې استعمال کړای شي.

4- د Turn او Open فعلونه په جملو کې استعمال کړي .

5- د Turn او Open فعلونو په معنا پوه شي.

6- د فاعلي ضمیرونو په معنا پوه شي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:**

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډ له ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر، فلش کارت

**فعالیتونه:**

**تیر لوست په لاندنی پوښتنو سره ورزوی.**

- **نسیمی او عایشی د کومی موضوع په هکله خبری کولی؟**
- **د ټولګی د ځینو شیانو نومونه واخلی.**

**د انګیزه پیداکولو پاره لاندنی پوښتنی وکړی.**

- **آیا کتاب د ټولګی د ضروری شیانو څخه دی؟**

- د کتاب د 26 مخ Subject pronoun برخه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو په ځیر سره غوږ ونیسي.
- جملې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او دا ځلې له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې جملې په لوړغږ ولولئ ،په پای کې یو ځل بیا جملې په لوړغږ ولولئ او معنا یې کړئ. پام وکړئ چې یوازې فاعلي ضمیرونه معنا کړئ.
- د 26 مخ د B د برخې جملې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.
- جملې یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او داځلې له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا ځلې یې له تاسې

| |
|---|
| سره يې يو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ تر څو جملې په لوړ غږ ولولي او تاسی هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ او ويلوکی مرسته وکړئ. په پای کې يو ځل بيا جملې په لوړغږ ولولئ او ويې ژباړئ . <br> - د کتاب د 28 مخ د Look and read د برخې جملې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځير سره غوږ ونيسي وروسته جملې معنا کړئ بيا له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې جملې په لوړغږ ولولي. يو زده کوونکي يوه جمله ولولی اوبل يې معنا کړی. |
| **ارزونه:** <br> هغه پوښتنې چې له زده کوونکو څخه بايد وشي: <br> 1- د کارکولو مېز ته په انګليسي کې څه وايي؟ <br> 2- آيا ساعت د ټولګي داړوند و شيانو له جملې څخه دی او په انګليسي کې ورته څه وايي؟ <br> 3- څوک د Chair کلمه په پښتو معنا کوي؟ <br> 4- آيا ننني لوست تاسې ته په زړه پوری و؟ <br> 5- دنني لوست څخه نوڅه زده کړل بيان ئي کړئ. |
| **د لوست لنډيز:** <br> تاسی په نني لوست کې فاعلي ضميرونه ولوستل چې I زه You تاسیWeمونږThey هغوی، He هغه نارينه She هغه ښځه او يا نجلۍ او It يې ساه شيان حيوانات ( ژوی) الو تونکې دی او همدارنګه د Open خلاصولو او Turn د پاڼې اړولو معنا ګانې زده کړل. |
| **کورنی دنده:** <br> زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کتاب د 27 مخ جملې پخپلو کتابچو کې وليکي. |

## Unit three
## Lesson three

**مخونه:**28-29

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي.

1- د ټولګي د شیانو نومونه واخلي.

2- د ټولګي دشیانونومونه ولیکي.

3- متن په سمه توګه ولولي.

4- د ځان په هکله یو متن ولیکي.

5- ددی لوست کلمی او لغاتونه پخپلو ورځینو خبر واتروکې وکاروي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:**Large لوی Second دویم Wall دیوال Year کال Speak خبرې کول.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي**: تخته او تباشیر

| **فعالیتونه:**<br>تېرلوست د لاندنیو پوښتنو په ذریعه وارزوئ:<br>- د زه، تاسې او هغوی ضمیرونه په انګلیسي ووایې؟<br>- He, she, it په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.<br>- ستاسې په ټولګي کې کوم شیان موجود دي؟<br>- خپل ځان په څو جملو کې معرفي کړئ؟<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کتاب د 28 مخ انځورونو ته وګوري او د پنځو شیانو نومونه چې په انځور کې ګوری پخپلو کتابچو کې ولیکي، وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو د هغو شیانو نومونه یې چې لیکلي دي ولولي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د پنځو شیانو نومونه چې مخکې مو یادداشت او لیکلی دی په جملو کې استعمال او پخپلو کتابچو کې ولیکي. وروسته له پنځو زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه جمله په تخته ولیکي.<br>- د کتاب د 29 مخ متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي، وروسته متن یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ. وروسته له هغی له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن په لوړغږ ولولي او تاسې هم د هغوی سره د سختو کلمو په ویلو کې مرسته وکړئ. |
|---|

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي.<br>1- د احمد په هکله څه پوهیږئ؟<br>2- آیا احمد د څلورم ټولګی زده کوونکي ؤ؟<br>3- د نني لوست څخه موخه زده کړل؟<br>4- آیا ننني لوست تاسې ته زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په ننني لوست کې د ټولګیي د شیانو نومونه یادداشت او په جملو کې استعمال کـړل او همدارنګـه مو یومتن د My class room په هکله ولوست. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د خپل ځان په هکله یو یو پاراګراف پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit three
## Lesson four

**مخونه:** 31-32

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

1- زده کوونکي د کمپیوټر په هکله وپوهیږي.

2- د کمپیوټر متن سم ولوستلای شي.

3- د نویو کلمو په معنا پوه شي.

4- نوې کلمې په ورځنیو خبرواترو کې استعمال کړي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:** Nearly تقریباً Invention اختراع Modren نوی او عصری Government حکومت Scientists پوهان Monitor نظارت کوونکي Achievement لاس ته راوړنې.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست دلاندنیو پوښتنو په وسیله وارزوئ:

- هغه پارا ګراف چې زده کوونکو د خپلو ځانونو په هکله لیکلی دی ولولئ.
- د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.
- آیا له کمپیوټر سره بلدتیا لرئ؟
- څو ډوله کمپیوټر پیژنئ؟
- آیا کمپیوټر د ټولګي د لوست د اړتیا د وړ شیانو څخه دی؟
- د کتاب د 31 مخ Time to read د متن د برخې موضوع په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.
- متن یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او معنا یې کړئ وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن په لوړغږ ولولي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 31 مخ True, false د برخې جملې له ځانه سره په پټه خوله ولولي او سمو جملو ته د T او ناسمو جملو ته د F توری ولیکي. وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله په لوړغږ ولولي او ووایي چې صحیح وه او که غلطه.
- د 32 مخ د Look, read and memorize د انځورونو د برخې کلمې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.

| |
|---|
| - کلمې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې کلمې په لوړغږ ولولي، وروسته کلمې په لوړغږ بیا ولولي او د زده کوونکو په مرسته یې معنا کړئ. |
| **ارزونه:** هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي.<br>1- مونږ د کمپیوټر څخه د کومو کارونو لپاره ګټه اخلو؟<br>2- د زده کوونکي او پنسل پاک کلمو ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>3- د Paper د کلمې معنا ووایاست؟<br>4- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې وو؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننې لوست کې یو متن د کمپیوټر په هکله ولوست او همدارنګه مود Teacher, Student,Chair, Table, Paper, Dictionary, Cpmputer, NoteBook, Eraser. کلمې یو ځل بیا په تکراري توګه ولوستلې. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Computer in the modern world متن پخپلو کتابچو کې ولیکي |

## Unit three
## Lesson five

**مخونه:** 33-34

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- د ټولګی اړوندی کلمی د کیسی په جدول تشخیص او وپیژنی.

2- د کیسی(معما) په جدول کې کلمی په ورځینو خبر واتروکې استعمال کړی.

3- لنډی او آسانه جملې ولولي.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډ له ییز

**د لوست مرستندویه توکي:**فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ:

- مونږ د کمپیوټرنه د کومو کارونو لپاره ګټه اخلو؟
- څو ډو له کمپیوټرونه پیژنی؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا د کیسې یا معما په معنا پوهیږی؟
- په دیکشنرۍ کې کومی موضوع ګانې پیدا کیږي؟

- زده کوونکي په څلور کسیزو ډلو وویشئ ترڅو د 33 مخ د Words search د برخې فعالیت پخپلومنځونو کې کار و کري. لومړی تاسی ورکړل شوی مثال په عملي توګه کار وکړئ او وروي ښایاست او فعالیت ورته واضح کړئ وروسته په وار سره د هرې ډلې څخه وغواړئ هغه کلمې چې په کیسی(معما) کې یې پیدا کړې دي ووایي او نوروته یې وښایي. په هغه صورت کې چې دې ډلې غلطي وکړه وخت بلی ډلې ته ورکړئ هڅه وکړئ چې دا فعالیت د سیالی په توګه اجرا او عملي کړئ
- .

Table

Eraser

Chair

Computer

Book

Pen

Pencil

| T | A | B | L | E | P | E | N | S | T |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| E | R | A | S | E | R | F | O | R | U |
| A | A | C | O | M | P | U | T | E | R |
| C | H | A | I | R | J | K | E | M | V |
| H | P | E | N | C | I | L | B | N | W |
| E | B | F | B | O | O | K | O | O | X |
| R | C | G | B | B | N | G | O | P | Y |
| R | D | H | V | N | V | S | K | Q | Z |

Notebook

Teacher

- د 33 مخ د Look and read د برخې جملې په لوړغږ ولولئ او زده کوونکي دې تاسې ته غوږ ونيسېي وروسته جملې زده کوونکو ته معنا کړئ او له هغوی څخه وغواړئ چې په ځانګړي توګه جملې په لوړغږ سره ولولي.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د 34 مخ Read and mach د برخې جملې په پټه خو له له ځان سره ولولي او هغه د پنسل پواسطه د اړوند و انځورونو سره ونښلوی، وروسته له هغوی څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې يو يو انځور وښايي او د هغې اړونده جمله په لوړغږ ولولي.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې بايد له زده کوونکو څخه وشي:

1- د This is a computer جمله په پښتو کې څه معنا ورکوي؟

2- څوک کولای شي د Note book او Chair کلمې په جملو کې استعمال کړي؟

3- څوک کولای شي د Eraser کلمه سپيل او يا هيجا کړي؟

4- آيا نننی لوست تاسی ته په زړه پوري ؤ؟

**د لوست لنډيز:**

تاسي په نننی لوست کې کلمې د کيسی( معما) په جدول کې پيدا کړې او همدارنګه لنډې او ساده جملې مو ولوستلې.

**کورنی دنده:** زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 34 مخ د Read and match د برخې جملې پخپلو کتابچو کې وليکي.

# Unit four

## Lesson one

**مخونه:** 34-36

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي د اونۍ ورځې او دکال میاشتې او تاریخ یانیته وپیژني.

2- د اونۍ د ورځو نومونه او د میاشتو نومونه په سمه توګه ولولی.

3- د دی لوست کلمې او موضوع ګانې پخپلو ورځنیو خبرواتروکې استعمال کړي.

**نوي لغتونه:**ورځ Day تاریخ Date وخت Time میاشت Month کال Year

**د لوست د تدریس میتودونه:**فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ:

- د Computer, teacher, eraser کلمی په پښتو معنا کړي.

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړېپه هیله لا ندې پوشتنې وکړئ.

- څوک ویلا شي چې نن تاریخ څو دی؟
- اوس د کال کومه میاشت ده؟
- څوک د خپل پیدا کیدو په نیته باندی پوهیږی؟

- د 36 مخ د یالوګ په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکوځخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي. وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دیالوګ د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي.
- دیالوګ یو ځل بیا په لوړغږ ولولي اوویې ژباړئ وروسته له زده کوونکو څخه د دوو ډلو په توګه وغواړئ چې دیالوګ په لوړغږ تمثیل کړي او تاسیې هم له هغو سره د سختو کلمو په ویلوکې مرسته وکړئ.
- د 37 مخ Vocabulory د برخې کلمی په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړۍ چې په ځیر سره غوږ ونیسی.
- کلمی یو ځل بیا په لوړغږ ولولي او دا پلا د زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې کلمې په لوړغږ ولولي په پای کې کلمی یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او معنا یې کړئ.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

1- څوک د اونۍ د ورځو نومونه ویلای شي؟

2- وخت ته په انګلیسي کې څه وایي؟

3- د جمعې ورځې ته په انګلیسي څه وایي؟

4- له دې امله چې ځینې نوې کلمې مو د نیټې او وخت په هکله زده کړې څه ډول احساس کوئ؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په ننني لوست کې د اونۍ د ورځو نومونه او د کال د میاشتې او نیټې په هکله زده کړې وکړې.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 37 مخ د Vocabulory د برخې کلمې پخپلو کتابچو کې ولیکي.

# Unit four
## Lesson two

**مخونه:** 37-38

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي په انګلیسي د کال د 12 میاشتو نومونه واخیستلای شي.

2- داونۍ ورځې په سمه توګه ولولئ او وئي لیکلای شي.

3- د دی لوست په هکله کلمی او موضوع ګانې پخپلو ورځنیو خبرواتروکې استعمال کړای شي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:**Divided ویشل شوې مسیحي جنتري Gregorian– Calender –Lenghth په موده اوږ دوالی Leap year کبیسه کال

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ:

- شنبې ورځې ته په انګلیسي کې څه وایي؟
- آیا د اونۍ ورځې په انګلیسي ویلای شئ؟

د نوی لوست د زده کړ لپاره د انګیز پیدا کول په لاندنیو پوښتنو سره وکړئ.

- یو کال څو ورځې دی؟
- Sun day څو شنبه ده؟
- نن نیټه څو ده؟

- د 38 مخ د Reading د برخې متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره تاسې ته غوږ ونیسي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړی توګه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ ولولي. وروسته متن زده کوونکو ته معنا کړئ او هغوی ته وخت ورکړئ چې د دو دقیقو لپاره یې له ځانونو سره ولولي په پای کې له یو یا دو تنو زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن ولولي او ویې ژباړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 38 مخ د Exercise د برخې فعالیت په ځانګړي توګه اجرا کړي. هغوی ته ووایاست چې د جملو تش ځایونه د مناسبو کلمو پواسطه د پورتني متن دګټې اخیستلو په مرسته ډکې کړي وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه جمله په لوړغږ سره ولولي. په هغه صورت کې چې یو له هغوی څخه تیروتنه وکړی موقع او فرصت بل زده

| |
|---|
| کوونکي ته ورکړي.<br>- د 39 مخ Listen and repeat د برخې کلمې په لوړغږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځير سره غوږ ونيسي.<br>- داونۍ نومونه يو ځل بيا په لوړغږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو نه وغواړئ چې تا سی سره ئي يو ځای تکرار کړی وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړی توګه وغواړئ ترڅو داونۍ نومونه په لوړغږ سره ولولي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 39 مخ Conversation برخه لومړی په ځانګړي توګه بشپړه کړی وروسته هغوی ته ووايئ چې محاوره د خپل نږدې ملګري سره تمرين کړي.<br>- د زده کوونکو څخه د دوه کسيزو ډلو په توګه وغواړئ چې محاوره په لوړغږ سره پخپلو کې تمثيل کړي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په ويلو کې مرسته وکړي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې بايد له زده کوونکو څخه وشي.<br>1- د سه شنبې ورځې ته په انګليسي کې څه وايي؟<br>2- د What day was yesterday? ځواب په انګليسي وليکئ.<br>3- د هفتې کومه ورځ د F په توري پيل کيږي ويې ليکئ.<br>4- آيا ننني لوست تاسی ته په زړه پوری ؤ؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسی په ننني لوست کې د اونۍ د ورځو او د کال د مياشتو په هکله زده کړې و کړې. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې داونۍ نومونه دوه دوه ځلی پخپلو کتابچو کې وليکي. |

## Unit four
## Lesson three

**مخونه:** 39-40

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي د کال میاشتی وپیژني او ویې لیکلای شي.

2- د کال د میاشتو نومونه په سمه توګه ولولي.

3- د کال د میاشتو نومونه په ورځنیو خبرواتروکی استعمال کړای شي.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی- دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکې:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ.

- یو کال څو ورځې دی؟
- څوك داونی دورځو نومونه ویلای شي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست په هیله لاند پوښتنې وکړئ.

- څو میاشتې یو کال کیږي؟
- Febreuary د کال څومه میاشت ده؟
- آیا لمریزه نیټه د میلادي نیټې سره توبیرلري؟

- د 40 مخ د Let’s learn something new د برخې کلمې په لوړغږ سره ولولئ اوله زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.
- د میاشتی نومونه د جنتري له مخې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د کال د میاشتو نومونه په لوړغږ سره ولولي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 40 مخ د Let’s write د برخې فعالیت د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي. د مثال په توګه: یو زده کوونکي د کال د یوی میاشتی نوم وایي او بل زده کوونکي هغه پخپله مورنی ژبه(پښتو) لیکي. وروسته له زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې د ټولګي مخی ته راشي او دا فعالیت د تختې پرمخ سرته ورسوي.
- د درسي کتاب د 41 مخ د Exercise د برخې فعالیتونه زده کوونکو ته ولولئ او زده کوونکو ته لارښوونهوکړئ چې د جملو تش ځایوڅخه په مناسبو کلمو سره( د کال د میاشتو په نومونو) سره ډك

| |
|---|
| پوښتنه لولي او بل زده کوونکي له شعر څخه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکوي.<br>- د 83 مخ د Look and match د برخې کلمې په لوړغږ ولولئ او زده کوونکي دې له تاسې وروسته هغه تکرار کړي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو کلمې په پټه خو له له ځان سره ولولي او د هرې یوې شمیره دې له اړوندو انځورونو سره ارتباط ورکړي او د ور کړل شوي مثال په توګه دې ولیکي.<br>- له زده کوونکو نه په ځانګړي ډول وغواړئ چې یوه یوه کلمه په لوړغږ ولولي او انځور دې وښایي په هغه صورت کې چې یو له هغو څخه غلطي وکړي، وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- پورتنی شعر د کومې موضوع په هکله ؤ پرې خبرې وکړئ؟<br>2- آیا کولای شئ د ټولګي د اړوندو شیانو نومونه واخلئ؟<br>3- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په نننی لوست کې د تېرو لوستونو برخې ولوستلې او تکرار مو کړې. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 83 مخ د Look and match د برخې د انځورونو نومونه پخپلو کتابچو کې ولیکي |

## Unit Eight
## Lesson three

**مخونه:** 83-84

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي داونی ورځې او میاشتی وپیژني او نومونه یې واخلي.

2- داونی د ورځو نومونه ولیکلای او تکرار شي.

3- داونی د ورځو او میاشتو نومونه پخپلو خبرواتروکې استعمال کړي.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکې:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دې لپاره چې ښوونکی ډاډ ترلاسه کړي له زده کوونکو څخه دې د تېرې ورځې د لوست په هکله لاندې پوښتنې وکړي:

- د قلم تراش، بیاتي او د ښوونځي د بکس کلمې په انګلیسي ووائی؟
- د Is your class clean and tidy? پوښتنی ته ځوابو وایي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- داونی د ورځونومونه وایي؟
- د کال د میاشتو نومونه ویي؟

- د Let's write د برخې کلمې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.
- زده کوونکو ته په ځانګړي توګه لارښوونه وکړئ چې داونی د ورځو نومونه د ورکړل شوي مثال سره سم د شمیرو په ترتیب ولیکي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې داونی یوه یوه ورځ په لوړغږ ولولي، په هغه صورت کې چې یو زده کوونکی غلطي وکړه وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 84 مخ د دوهمې برخې د درسي کتاب د ورکړل شوی مثال سره سم چې ګډې و ډې کلمې دي په سمه توګه ولیکي او بیایې په مقابل خوا کې په تشو ځایونو کې د کلمو تر څنګ ولیکي.
- له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي، یوه یوه کلمه د تختې پرمخ ولیکي،په هغه صورت چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړه وار بل زده کوونکي ته ورکړئ.

| |
|---|
| - د 85 مخ د Let’s practice د برخې کلمې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره ورته غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د میاشتو نومونه په پټه خو له له ځان سره ولولي او د ورکړل شوي مثال سره سم یې په تشوځایونو کې ولیکي چې د کال کومه میاشت ده وروسته له زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه میاشت په لوړغږ ولولي او و دې وایي چې د کال څوومه میاشت ده.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو شمیرې له ځان سره په پټه خو له ولولي او هغه په تورو ولیکي، وروسته د هغوی نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه شمیره د تختې پرمخ ولیکي، په هغه صورت کې چې یو له هغوی نه غلطي وکړي وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- څوک کولای شي د اونۍ د ورځو نومو نه واخلي؟<br>2- څوک د کال د میاشتو نومونه ویلای شي؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په نني لوست کې داونۍ د ورځو او د کال د میاشتو نومونه ولوستل اوومو لیکل. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې داونۍ د ورځو او د کال د میاشتو نومونه پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Eight
## Lesson four

**مخونه:** 85-86

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي متن په سمه توګه ولولي.

2- د سمو او ناسمو جملو ترمنځ توپیر وکړای شي.

3- د نوو کلمو په معنا پوه شي او په ورځني خبرو اتروکې تریې ګټه واخلي.

4- تیر لوستونه تکرار اوکړی.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکې:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی لپاره چې ښوونکی ډاډ ترلاسه کړي له زده کوونکو څخه دې د تېرې ورځې د لوست په هکله لاندې پوښتنې وکړي.

- د سامبر د کال څوومه میاشت ده؟
- د شنبی ورځې ته په انګلیسي کې څه وایي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا د خپلو پروګرامونو د ښه پلي کولو په هیله سم مهالویش لرئ؟
- څوک په انګلیسي ویلای شي چې په څو بجو د سهار له خوبه پاڅیږي؟

- د 86 مخ د It's time to read د برخې متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي.
- زده کوونکو ته څو دقیقې وخت ورکړئ چې متن له ځان سره په پټه خو له ولولي او سختې کلمې په نښه کړي وروسته له څو زده کوونکو نه وغواړئ چې متن په لوړغږ ولولي او تاسې له هغوی سره د سختو کلمو په ویلو کې مرسته وکړئ په پای کې یو خل بیا متن په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 86 مخ د True, False د برخې جملې په پټه خوله ولولي او سمې جملې د T او نا سمې جملې دF په لینو کې په نښه کړي، وروسته له زده کوونکو نه په ځانګړی توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله په لوړغږ ولولی او ووایي چې سمه وه او که ناسمه.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د خپل نږدې ملګري سره د انځورونو په هکله خبرې وکړي. د مثال په توګه دې ووایي چې په انځورونو کې څه شي ګوري او خلک څه کار کوي؟

- د 87 مخ د Look and match د دوهمې برخې جملې په لوړغږ سره ولولئ او لـه زده کوونکـو نـه وغواړئ چې له تاسې سره يې يو ځای تکرار کړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې جملې په پټه خوله له ځان سره ولولي او بيايې داړوندو انځورونـو سره او د انځور دشميری په ليکلو سره ارتباط ورکړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګـه وغواړئ چې يوه يوه جمله په لوړغږ ولولي او انځـوريې وښـايي. پـه هغـه صـورت کـې کـه کـوم زده کوونکي نه غلطي وکړه وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې دريمی برخې کلمې په پټه خو له ولولي او هغه د کتاب د ورکړل شوي مثال په ډول يو له بل سره ارتباط ورکړي، تر څو په يوې معنا لرونکې جملې بدله شي، وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې يوه يوه جمله په لوړغږ ولولي پـه هغـه صـورت کـې چې يو له زده کوونکو نه غلطي وکړي، وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې بايد له زده کوونکو څخه وشي:

1- دورځنی مهمو کارونو نومونه واخلی؟

2- آيا دا لاندې جمله په سمه توګه معنا کولای شئ؟

I am quite hapy with my daily activites

3- فعاليت ته په انګليسي څه وايي؟

**د لوست لنډيز:**

تاسی په ننني لوست کې تېر لوستونه تکرار کړل او د ورځني فعاليتونو په هکله مو جملې و لوستلې.

**کورنی دنده**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 87 مخ جملې پخپلو کتابچو کې وليکي.

**Unit Eight**
**Review**
**Lesson five**

**مخونه:** 87-88

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي د کال د فصلونو او میاشتو په نومونو و پوهیږي او تکرار ئي کړی.

2- د انځورونو له مخې اړوندې جملې پیدا کړای شي.

3- د دې لوست اړوندې کلمې او جملې پخپلو ورځنیو خبرواترو کې استعمال کړای شي.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکې:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی لباره چې ښوونکی ډاډ ترلاسه کړي له زده کوونکو څخه دې د تېر لوست په هکله دا پوښتنې وکړي.

- آیا د هغو فعالیتونو نومونه ویلای شئ چې په تېر لوست کې مولوستلی ؤ؟
- د I take shower د جملی معنا څه شي دی؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- یو لمریز کال څو میاشتې او څو فصله دی؟
- یوه کال څو میاشتې دی؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 88 مخ د Find and write برخه په دوه کسیزو ډله ییزه توګه پخپلو کې ترسره کړي او په هر څو مره شمیرو سره چې د کال د میاشتو نومونه د تورو د جدول له منځه پیدا کولی او معلومولی شي ،پیدا او دایره دې تریط تاوه کړیی. همدارنګه زده کونکو ته لارښوونه وکړئ چې د میاشتو د هر فصل د جدول نومونه د تورو د جدول د پاسه ولیکي.
- د زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې دې یوې یوې میاشتې له نوم څخه چې کړی نزې تاوه شوې ده ولولي او بیا دې ووایي چې د کال په کوم موسم یا فصل پوری اړه لري.
- له زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 89 مخ د Read and circle د برخې جملې په پټه خو لـه لځان سره ولولی او د انځور سره سم دې سمه جمله وټاکي او کړی ترې تاوه کړي.
- زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د انځور لانـدې درې درې جملـې پـه لـوړغږ ولـولي او ودې وایي چې کومه جمله د انځور پورې اړه لري. په هغه صورت کې چې یو لـه زده کوونکـو څخه غلطی وکړه وخت دې بل زده کوونکي ته ورکړي.

| - جملې په لوړغږ ولولئ او وېې ژباړئ. |
|---|
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- څوک د څلورو فصلونو نومونه په انګلیسي ویلای شي؟<br>2- زه د تلویزیون دلیدلو په حال کې یم په انګلیسي یې ووایئ؟<br>3- د Drawing د کلمې معنا څه ده؟<br>4- څوک کولای شي د کال 12 میاشتې په انګلیسي ووایي؟<br>5- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نن‌ني لوست کې د کیسی(معما) په جدول کې د کال د میاشتو نومونه پیدا کړل او همدارنګه مـو د تېرو لوستونو اړوندې جملې وویلې. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 89 مخ جملې پخپلو کتابچو کې ولیکی. |

د معما د حل شل

| | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| J | A | N | U | A | R | Y | E | M | A | O | I | R | U | D | O |
| U | I | A | E | U | S | U | M | A | R | C | H | O | R | E | I |
| N | R | J | Y | G | A | I | O | Y | E | T | U | A | S | C | R |
| E | A | U | S | U | R | E | Y | M | Y | O | Y | P | I | E | U |
| O | E | L | I | S | E | P | T | E | M | B | E | R | A | M | R |
| S | M | Y | O | T | I | A | U | R | Y | E | S | I | Y | B | E |
| E | U | R | S | F | E | B | R | U | A | R | Y | L | O | E | I |
| A | N | O | V | E | M | B | E | R | O | I | R | U | S | R | E |

# Unit Nine
## Lesson one

**مخونه:** 89-91

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي دیالوګ ولولي او په معنی او مفهوم ئي پوه شی.

2- ژوو او حیواناتو نومونه ولولي او ویې وایي.

3- د نویو کلمو په معنا پوه او پخپلو ورځنیو خبرواترو کې یې استعمال کړي.

**نوي لغتونه:** Zoo–ژوبڼ –Elephant– فیل، شوخ Naughty- بې پروا Fun ساعت تیرې Monkey شادي (بیزو) Lion زمری People خلک

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکې:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ:

- دمنی فصل ته په انګلیسي کې څه وایي؟
- څوک کولای شي داونی د ورځو نومونه په انګلیسي ووایي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- څو ډوله ژوي پیژنی؟
- ژوی چیرې ژوند کوي؟

- د 91 مخ ډیالوګ په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي، وروسته له زده کوونکو نه وغواړئ چې ډیالوګ د خپل نږدې ملګري سره په کراره تمرین کړي.
- له زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې ډیالوګ په لوړغږ تمثیل کړي، وروسته دیالوګ په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړی.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 91 مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې د خپلو نږدې ملګرو سره د دوه کسیزه ډلو په توګه تمرین کړي. دمثال په توګه: لومړی زده کوونکي پوښتنه وایي او دویم زده کوونکي د دیالوګ نه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکوي.
- له زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه د ټولګي د مختلفو برخو په هکله نه وغواړی چې د Ask and answer د برخې فعالیت په لوړغږ سرته ورسوي.
- د 92 مخ د Let's learn something new د برخې کلمې په لوړغږ ولولئ او زده کوونکي دې

| |
|---|
| تاسې ته غوږ ونیسي.<br>- کلمې په لوړغږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسی سره یې یو ځای تکرار کړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې کلمې په لوړغږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د کلمویه سم تلفظ کولو کې مرسته وکړئ |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- ژوبڼ ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>2- شید واو د طاووس ښځکې ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>3- آیا کولای شئ د څو وحشي ژویو نومونه په انګلیسي ووایئ؟<br>4- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې دژوبڼ په هکله یو دیالوګ ولوست او همدارنګه مو د ژویو نومونه لکه Bear, Elephant, Horse, Donkey, Camel, peacock, Duck, Parrot, lion زده کړل. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 92 مخ د ژویو نومونه پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Nine
## Lesson two

**مخونه:**92-93

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شی.**

1- زده کوونکي شعر په سمه توګه ولولي.

2- دشعر په مفهوم پوه شي.

3- د ژویو نومونه په سمه توګه ولولي.

4- د ژویو نومونه د هغوی له انځورونو سره ربط ورکړي.

5- ددی لوست نوی کلمی او موضوع ګانی پخپلو ورځینو خبروکې استعمال کړی

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:**Turkey فیل مرغ parrot طوطی peacook طاؤس Duck مرغاوی Bear خرس

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکې:**فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ.

- خرس او طوطي ته په انګلیسي کې څه وایي؟
- د Duck او Horse کلمو ته په پښتو کې څه وائي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا تر اوسه مو زمری لیدلی دی؟
- آیا ویلای شئ زمري ته په انګلیسي کې څه وایي؟

- د 93 مخ د Time to read د برخې شعر په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو ته وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.
- شعر یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو نه وغواړئ چې شعر په لوړغږ ولولي په پای کې شعر یو ځل بیا ولولئ اوویې ژباړی.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د True or False جملې د خپلو ځانونو سره په پټه خو له ولولي او د پورتني شعر نه په ګټې اخیستلو سره هغه جملې چې سمې دي د T او هغه چې ناسمې دیې د F په لین کې په نښه کړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړی توګه وغواړئ ترځو یوه یوه

جمله په لوړغږ ولوی او ودې وايې چې سمه وه او که غلطه.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 94 مخ د Read and match د برخې کلمې پخپلو کې په پټه خوله ولولي او بيايې د اړوند و انځورونو سره سم ارتباط ورکړي. د مثال مطابق دې دا کار وکړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې يوه يوه کلمه په لوړغږ ولولي او انځور دې وښايي په هغه صورت کې که کوم زده کوونکي غلطي وکړه وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.

**ارزونه:**

هغه پوښتې چې بايد له زده کوونکو څخه وشي:

1- هغه ژوي چې نومونه مو ولوستل اهلي ؤ او که وحشي؟

2- د Trukey کلمه څه معنا لري؟

3- اوښ ته په انګليسي کې څه وايي؟

4- آيا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟

**د لوست لنډيز:**

تاسې په نننی لوست کې يو لوست د شعر او فيل مرغ په هکله او همدارنګه مو د ژويو نومونه ولوستل.

**کورنی دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د دې لوست شعر په ياد زده کړي او پخپلو کتابچوکې يې وليکي.

## Unit Nine
## Lesson three

**مخونه:** 96

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي معما(کیسې) وپیژني او هغه حل کړي.

2- د ژویو نومونه په سمه توګه ولیکی

3- ددی لوست کلمی او موضوع ګانی په ورځنی ژوند کې استعمال کړی.

4- د ژویو په اهمیت پوه او هغوی ته ارزښت او درناوی قایل شي.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:**فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېرلوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ:

- څوکیسې مو تر او سه پورې حل کړي دي؟
- اوښ ته په انګلیسي کې څه وایي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- د تېرلوست (شعر) د کومی موضوع په هکله ؤ؟
- وحشي ژوي چیرته ساتل کیږي؟

- د Fun with words د برخې کیسې زده کوونکو ته تشریح کړئ وروسته له هغوی څخه وغواړئ چې دخپل نږدې ملګري سره ورکړل شوې کلمی د تورو په جدول کې پیدا کړي.
- له جوړو شویو ډلو نه وغواړئ چې یوه یوه کلمه یې چې پیدا کړې وې ده ولولي او نورو ته دې وښایي په هغه صورت کې چې یو له ډلو څخه غلطي وکړي بلې ډلې ته دې وار او وخت ورکړي.
- زده کوونکو ته په ځانګړي توګه دنده وسپارئ چې د 95 مخ د Writing د برخې نامرتبې کلمې د معنا لرونکو کلمو په شکل سره جوړې او ترتیب کړي، هغوي ته یا دونه وکړئ چې دا د ژویو نومونه دي چې مخکې مو لوستلي دي، خو پام وکړئ چې له تېرو لوستونه څخه یې کاپي او رانقل نه کړي.
- له زده کوونکو نه په ځانګړئ توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي ، یوه یوه کلمه چې یې پیدا کړې او ترتیب کړې ده د تختې پرمخ ولیکي، په هغه صورت کې چې یو له هغوی نه غلطي وکړي وار دې بل زده کوونکي ته ورکړي چې سمه کلمه ولیکي.
-

| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د camel کلمه څه معنا لري؟<br>2- شتر مرغ ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>3- د لاندې کلمې صحیح سپیل ولیکئ. K-c-u-d<br>4- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟ |
|---|
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننی لوست کې د ژویو نومونه د تورو په جدول کې پیدا کړل او همدارنګه مو د کلمو دلیکلو په شکل کار وکړ. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Fun with words د برخې کلمو ته یوه یوه جمله جوړه کړې او پخپلو کتابچو کې یې ولیکي. |

**د کیسې یا معما د حل شکل**

| L | I | O | N | P | **O** | **P** | **D** | **E** |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| **A** | S | J | M | E | V | P | H | |
| **A** | D | H | H | A | Z | H | K | L |
| **D** | A | D | U | C | K | O | X | R |
| **D** | T | T | H | O | G | R | A | F |
| **F** | G | H | D | C | Z | S | T | G |
| **A** | D | F | A | K | C | E | N | N |
| D | O | N | K | E | Y | Q | M | P |
| **I** | L | C | K | F | U | V | V | A |
| **G** | F | A | N | R | A | F | D | R |
| **A** | S | M | U | G | A | M | A | R |
| **E** | B | E | A | R | S | T | P | O |
| **A** | S | L | N | K | O | F | H | T |

## Unit Nine
## Lesson four

**مخونه: 95-96**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي د ژوبڼ او ژویو په هکله چې هلته ساتل کیږي پوه شي.

2- متن په سمه توګه ولولي.

3- وحشي ژوي او د هغوی حقونه وپیژني.

4- د ژویو حقونه وپیژني او پوه شي.

5- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځنیو خبرواتروکې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې: غلاکول** Stole، قفس Cage، سخت Hard، فلز Metal ، دروازه Gate ، چلول Drive، پورته کول Pick uP، بلنه ورکول Invite ، ډاریدل Scard، تښتیدل Ran away ، غوریدل Roar، روښانی Flash، خفه Sadly، خرطوم Trunk

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکې:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وکړئ:

- څوکبه د ژویو نوموځخه چې په تېرو لوستونو کې یې زده کړي ووایي؟
- د Duck معنا څه شي دی؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا تر اوسه باغ وحش( ژوبڼ) ته تللي یاست؟ او که تللی یاست کوم ژوی مو هلته لیدلی دی؟

- د 94 مخ Time to read د برخې متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره تاسې ته غوږ ونیسي، وروسته زده کوونکوته لارښوونه وکړئ چې متن په پټه خوله له ځان سره ولولي او هغه کلمې چې په معنا یې نه پوهیږي او یایې په تلفظ کولو کې ستونزي ولري په نښه کړي.
- متن یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او ویې ژباړئ، وروسته له څو زده کوونکو نه وغواړئ چې متن پراګراف په پراګراف ولولي او تاسې له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کولو کې مرسته وکړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 91 مخ د Ask and Answer د برخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي د مثال په توګه یو زده کوونکي دې پوښتنه ولولي او دویم زده کوونکي دې د 90 مخ د متن څخه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکړي.

| |
|---|
| - له زده کوونکو نه د دوه کسیزو ډلو په توګه د ټولګي د مختلفو برخو په هکله وغواړئ چې د Ask and answer د برخې فعالیت لکه څرنګه چې یې د خپل نږدې ملګري سره ترسره کړی دی، سرته ورسوي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه صحیح ځواب ورنکړای شو وار بل زده کوونکي ته ورکړئ. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د پورتني متن اصلي موضوع بیان کړئ.<br>2- څوک کولای شي د Who asked the boy, let's go to the zoo? پوښتنی ته ځواب ووایې؟<br>3- ببر ته په انګلیسي کې څه وايي؟<br>4- څوک کولای شي د Elephant او Monkey کلمې په پښتو معنا کړي؟<br>5- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پوري ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په ننني لوست کې یو متن د ژوبڼ په هکله ولوست. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 97 د Ask and answer د برخې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي او بیایې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Nine
## Lesson five

**مخونه: 97-98**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

۱- زده کوونکي ژوي وپېژني او نومونه یې واخلي د ژوو نومونه ولولي.

۳- د ځینو ژویو د اوسېدو په ځایونو پوه شي د ځینو ژویو د خوړلو شیان وپیژنی.

۵- د ژویو نومونه د هغوی له انځورونو له مخې پوه شي.

۶- نابشپړې کلمې بشپړې کړي.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکې:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندینیو پوښتنو له لارې وارزوئ:

- د طاووس، بېکې او خرس ته به انګلیسي کې څه وایي؟
- د څو ژویو نومونه ووایاست چې په ژوبڼ کې ساتل کیږي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا تر اوسه پورې مو د اوښ سپرلی کړی دی؟
- د Elephant او Lion کلمې سپېل کولای شي؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۹۸ مخ د Look, Find and circle د برخې کلمې د خپلو ځانونو سره په پټه خوله ولولي او د انځورونوله صحیح نومونو څخه دایره تاوه کړي.
- له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې د انځور لاندې درې واړه کلمې په لوړ غږ سره ولولي او له هغه انځور نه یې چې دایره تاوه کړې ده وښایي، په هغه صورت کې چې یو لـه زده کوونکو څخه دایره د غلطې کلمې څخه تاوه کړې وه، وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.
- د ۹۸ مخ د Reading د برخې جملې په لوړ غږ ولولئ او زده کوونکي دې په پټه خولـه تاسـې ته غوږ ونیسي.
- جملې یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره یـې یو ځاي تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو څخـه وغـواړئ چـې جملـې پـه لـوړ غـږ سـره ولولي.

| |
|---|
| - زده کوونکو ته په ځانګړې توګه دنده ورکړئ چې د ۹۹ مخ د Spelling د برخې نابشپړې کلمې په سمو تورو سره بشپړې کړي.<br>- له زده کوونو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه کلمه په تخته ولیکي، په هغه صورت کې چې یو له هغو څخه غلطي وکړي، د بل زده کوونکي څخه وغواړئ چې سمه کلمه ولیکي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۹۹ مخ د Spelling برخه د ضروري تورو په وسیله ډکې کړي، وروسته دې د کلمو سپېل په لوړ غږ سره ولولي.<br>- د ۹۹ مخ د Let's practice something different د برخې فعالیت زده کوونکو ته وروښایاست او لارښوونه ورته وکړئ، خو لومړی تاسې یوه یا دوه جملې د زده کوونکو په مرسته په عملي توګه سر ته ورسوئ.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا فعالیت د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي، وروسته له زده کوونکو څخه د دوه نفري ډلو په توګه د ټولګي د مختلفو ځایونو څخه وغواړئ چې دا فعالیت په لوړ غږ سره سر ته ورسوي او تاسې هم له هغوی سره د جملو په ویلو کې مرسته وکړئ. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>۱- د Bear د کلمې معنا څه ده؟<br>۲- د ژویو پېژندل څه ګټه لري؟<br>۳- پړانګ ته په انګلیسي څه وایي؟<br>٤- آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننۍ لوست کې د ژویو نومونه د هغو د انځورونو له مخې وپېژندل او همدارنګه مو د کلمو سپېل کول هم کار وکړ. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۹۹ مخ د Let's Learn some thing differentبرخه پنځه وارې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Ten

## Lesson one

**مخوشخه: ۹۹ – ۱۰۰**

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شی.**

۱- زده کوونکي ډیالوګ په سمه توګه ولولي او تمثیل یې کړي.

۲- د ډیالوګ په مفهوم پوه شي.

۳- د وخت په هکله جملې ولوستلای شي.

٤- د وخت په هکله خبرې اترې وکړای شي.

٥- د دې لوست محاوره او جملې په خپلو ورځنیو خبرو اترو کې استعمال کړي او ګټه ترې واخلي.

**اصطلاحګانې:**You are welcome د مننې وړ ده. Of course البته. Thank You تشکر، مننه.

**دلوست میتودونه:**

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته، تباشیر او ساعت.

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزوئ:

- دا کلمې په پښتو معنا کړئ Horse, Donkey, Camel, Tiger؟
- اوښ چېرې ژوند کوي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- تاسې څو ډوله ساعتوڅخه پېژنئ؟
- آیا په انګلیسي ویلای شئ چې ساعت څو بجې دی؟

– د ۱۰۱ مخ ډیالوګ په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي، وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ چې ډیالوګ د خپل نږدې ملګري سره تمرین

کړي.

- د ټولګي د مختلفو ځایونو له زده کوونکو څخه وغواړئ چې ډیالوګ په لوړ غږ سره ولولي او تمثیل یې کړي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو او جملو په تلفظ کولو کې مرسته وکړئ او په پای کې یو ځل بیا ډیالوګ په لوړ غږ سره ولولئ او ویې ژباړئ.
- د ۱۰۲ مخ د Listen and Repeat د برخې متن په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي.
- جملې په لوړ غږ ولولئ او ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې له تاسې وروسته تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې په لوړ غږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د جملو په ویلو کې مرسته وکړئ.
- جملې یو ځل بیا د موبایل د ساعت په ښودلو سره او یا لاسي ساعت په عملي توګه ولولئ او زده کوونکو ته یې وروښایاست.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د وخت ویل د ساعت له مخې څخه د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ، ترڅو وخت په لوړ غږ سره ووايي او تاسې هم له هغوی سره د وخت په ویلو کې مرسته وکړي.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

۱- ۱۵ : ۵ په انګلیسي ووايي؟

۲- It is twelve o'clock د شمېرې په توګه ولیکي؟

۳- What time is it په انګلیسي معنا کړئ؟

٤- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نني لوست کې د وخت په هکله او دا چې څرنګه وخت ویل کیږي، زده کړې وکړې.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د Listen and Repeat د برخې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## Unit ten
## Lesson two

**مخونه:**102-101

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقيقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

۱- زده کوونکي شعر په سمه توګه ولولي.

۲- د شعر مفهوم درک کړي.

۳- وخت وپېژني او هغې ته اهمیت ورکړي.

٤- د وخت پوښتنه وکولای شي وخت په سمه توګه وویلای شي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:**ګران قیمته Expensive، مصرفول Spend، بېرته ګرځېدل Get Back.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکې:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندینیو پوښتنو سره وارزوئ:

- آیا چې ساعت څو بجې دی؟
- د ?How are you this morning پوښتنې ته ځواب کړی؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا عقربه لرونکی ساعت د ډیجیټال ساعت سره توپیر لري؟
- آیا کولای شي ووایي چې وخت څه ارزښت لري او څه ډول هغه مصرف کړو؟

- د Time to Read د برخې شعر په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي. وروسته زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې شعر د خپلو ځانونو سره په ټیټه خوله ولولي او هغه کلمې چې په معنا یې نه پوهیږي او یا یې په تلفظ کولو کې ستونزې ولري، په نښه کړي.
- شعر په لوړ او شاعرانه غږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې شعر په لوړ غږ سره ولولي او تاسې

هم له هغوی سره د سختو کلمو په ویلو کې مرسته و کړئ. په پای کې یو ځل بیا شعر په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ.

- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ۱۰۳ مخ د Ask and Answer د برخې فعالیت د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي، د مثال په توګه: لومړی زده کوونکي پوښتنه کوي او دویم زده کوونکي د شعر نه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکوي.
- د ټولګي د مختلفو ځایونو له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د Ask and Answer د برخې د فعالیت برخه په لوړ غږ سره ترسره کړي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په ویلو کې مرسته وکړئ.
- د ۱۰٤ مخ Let’s Practice د برخې جملې په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې وروسته یې تکرار کړي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د Let’s Practice د برخې فعالیت د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي، د مثال په توګه یو زده کوونکي پوښتنه لولي او دویم زده کونکی ځواب وایي.
- د ټولګي د مختلفو ځایونو له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د Let’s Practice د برخې فعالیت په لوړ غږ سره ترسره کړي او تاسې هم د سختو کلمو په ویلو کې مرسته ورسره وکړئ.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ۱۰٤ مخ د Let’s Practice د برخې فعالیت د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي. د مثال په توګه یو زده کوونکي پوښتنه کوي What time is it? دویم زده کوونکي خپل ساعت ته ګوري او د تمثیل په توګه ځواب ورکوي او وخت ورته وایي.
- د ټولګي د مختلفو ځایونو له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا فعالیت په لوړ غږ سره تمرین کړي او تاسې هم له هغوی سره د وخت په ویلو کې مرسته وکړئ.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

۱- موږ بایدله وخت څخه څه ډول ګټه واخلو؟

۲- دا جمله معنا کړي؟

Time is free, But Expensive

۳- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې و؟

| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننۍ لوست کې يو شعر د وخت په هکله ولوست او همدارنګه مو د وخت په هکله يوله بل څخه پوښتنې وکړې او ځوابونه مو ورکړل. |
| --- |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۰۴ مخ د Let’s Practice د برخې جملې په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## Unit ten
## Lesson three

**مخونه102-103**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

١- زده کوونکي وخت ووایي.

٢- وخت په تورو سره ولیکي.

٣- وخت د شمېرې په توګه ولیکي.

٤- د وخت ویل په خپلو ورځنیو خبرو اترو کې استعمال او ګټه ترې واخلي.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست په لاندینیو پوښتنو سره وارزوئ:

- د تېر لوست د شعر مفهوم په لنډ ډول بیان کړئ.
- د What time is it? پوښتنې ته ځواب ووایي.

د انګېزې د پیدا کولو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ:

- که ساعت نه وي په وخت څرنګه پوهېږو؟

- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د A د برخې ورکړل شوي وختونه د کتاب د مثال سره سم په خپلو کتابچو کې ولیکي، د فعالیت په جریان کې له ټولو زده کوونکو نـه لیدنـه وکـړئ او پـه لیکلو کې ورسره مرسته وکړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړي، چې د B د برخې فعالیت د مثال سره سم کار وکړي، وروسـته له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې د تختې مخې ته راشـي او وخـت پـر تختـه ولیکي، په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړه، وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.

زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د C د برخې فعالیت د ورکړل شوي مثال په ډول د خپل نږدې

| |
|---|
| ملګري سره کار وکړي، وروسته د ټولګي د مختلفو ځایونو د دوه نفري ډلو په توګه وغواړئ چې دا فعالیت په لوړ غږ سره ولولي، د مثال په توګه یو زده کوونکي وخت وایي او دویم زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او نوموړی وخت په تخته لیکي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۰۶ مخ د Read and Write د برخې فعالیت د خپلو ځانونو سره په پټه خوله ولولي او وختونه د ورکړل شویو انځورونو له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي. د فعالیت په جریان کې له ټولو زده کوونکو څخه لیدنه وکړئ او د وخت په لیکلو کې له هغوی سره مرسته وکړئ. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>۱- وخت ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>۲- آیا ویلای شي ساعت څو دی؟<br>۳- آیا کولای شي لاندنۍ جمله د شمېرې په توګه تبدیله کړي؟<br>It is quarter past twelve.<br>٤- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې د وخت او د وخت په هکله د پوښتنې کولو طریقې زده کړې. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۰۵ مخ د A او B د برخې فعالیتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

**Unit Ten**
**Lesson four**

**مخونه:** 104 ـ 105

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي دوخت په اهمیت پوه شي.

2- متن په سمه توګه ولولي وخت په وویلی شي.

3- د متن مفهوم درك او پرې پوه شي.

4- د نویو کلمو په معنا پوه او هغه پخپلو ورځنیو خبرواتروکې استعمال کړای شي.

**نوي لغتونه :**ګاونډی Neighbuor زینت ورکول Decorate ډیوی Candles لمانځنه کول Celeberate

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکې:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د تېر لوست ارزونه په لاندنیو پوښتنو سره وکړئ:

- څوك کولای شي چې لاندني وختونه په انګلیسي ووایي؟

05: 05 07: 39 01: 10 09: 17 04: 25

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا د زیږیدلو نیټه د وخت پورې اړه لري؟
- څوك کولای شي د زیږیدلو نیټه په دقیقه توګه ووایي؟

- د 107 مخ د Time to read د برخې متن په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي، وروسته له زده کوونکو نه وغواړئ چې متن د خپلو ځانونو سره په پټه خوله ولولي او هغه کلمې چې په تلفظ کې یې ستونزې ولري او یایې په معنا نه پوهیږي په نښه کړي.
- له زده کوونکو نه په ځانګړې توګه وغواړئ چې متن په لوړغږ سره ولولي وروسته متن یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او ویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 108 مخ د True, False د برخې جملې د خپلو ځانونو سره په پټه خو له ولولي او سمې جملې د T او ناسمې یا غلطې جملې د F په لین کې په نښه کړي.

| |
|---|
| - له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله په لوړغږ سره ولولي او و دې وایـي چې سمه وه یا ناسمه. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د زیږیدلو ورځې ته په انګلیسي کې څه وایې؟<br>2- Happy birthday په پښتو معنا کړئ؟<br>3- آیا د زیږیدلو د ورځې کالیزه مو لمانځئ ؟<br>4- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ. |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په ننني لوست کې یو متن د زیږیدلو د جشن په هکله ولوسـت او همدارنګـه مـو سـمې او ناسـمې جملې کارو کړی. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Birthday Party د ځان په هکله څوجملې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Ten
## Lesson five

**مخونه:**106-107

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي وخت وپیژني.

2- دوخت په اهمیت پوه او جملې په سمه توګه ولولي.

3- وخت په ورځنیو خبرواترو کې استعمال کړي.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکې:**فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په کولو سره وارزوئ:

- 4:3 بجو کې د فاطمی مورکیک چاته راووړ.
- د پیدا کیدلو د محفل خوبجی پای ته ورسید؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا د خپل پیدا کیدلو نیټه جشن کیسی
- په ښوونځی د شاملیدلو نیټه مو په یادده؟

- د 109 مخ د Time with past/ to د برخې جملې په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي، وروسته جملی یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي، وروسته له هغی نه د څو زده کوونکو نه وغواړئ چې جملې په لوړغږ سره ولولي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Your turn د برخې فعالیت د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي. د مثال په توګه: یو زده کوونکي یو وخت پخپله کتابچه کې لیکي او دویم زده کوونکي هغه لولي.
- له زده کوونکو څخه د دوه نفری ډلو په توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې یو وخت په تخته ولیکي او بل دې هغه وخت په انګلیسي ووایې.
- د 110 Daily activites د برخې د فعالیت جملې په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو نه وغواړئ چې هغه په لوړغږ سره ولولي، وروسته له هغې جملی یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ.

| |
|---|
| - زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 110 د Your turn برخه د کتاب د لاښوونې سره سم کار کړي او د هغوی څخه وغواړئ چې یو ساعت پخپلو کتابچو کې رسم کړي او بیا خپل ورځني فعالیتوڅخه د هغه له مخې ولیکي.<br>- له څو زده کوونکو نه وغواړئ چې هغه ورځني فعالیتونه چې یې لیکلي دي په لوړغږ سره ولولي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- آیا د Past او To کلمې دواړه په یوه جمله استعمالو لی شو؟<br>2- د Past اوTo کلمې څه وخت کارولای شو؟<br>3- څوک ویلای شي و پوښتي ساعت څو بجی دی؟<br>4- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په ننني لوست کې د Past او To کلمې دوخت سره ولوستلې. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې خپل ورځني فعالیتونه او دیوه ساعت رسمول په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Eleven
## Lesson one

**مخونه:**108-109

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي ډیالوګ په سمه توګه ولولي او تمثیل یې کړي.

2- د ډیالوګ په معنا او مفهوم پوه شي.

3- په درې ځوابه پوښتنو پوه اوو وپېژني درې ځوابه پوښتنې حل کړي.

4- د ځینو دندو نومونه وپېژني او د خپلې خوښې د دندې نوم هم ووایي.

5- د نویو کلمو په معنا پوه او په خپلو ورځنیو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** Shopkeeper دوکاندار، Gardner باغوان، Painter رنګمال، Mechanic مستري، Nurse پرستار.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړې او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په کولو سره وارزوئ:

- په انګلیسي ووایئ چې ساعت ٤٦ : ١٢ دی؟
- د to اوPast د کلمو څخه په ګټې اخیستلو سره ووایئ چې ٥٥ : ٦ دی؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- کوم کارونه مو ډېر خوښېږي؟
- آیا غواړئ چې ډاکټر شئ؟

- د ١١٢ مخ ډیالوګ په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي، وروسته له زده کوونکو غواړئ چې ډیالوګ د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي.
- له ټولګي د مختلفو ځایونو د زده کوونکو څخه د دوه کسیزه ډلو په توګه وغواړئ، چې ډیالوګ په لوړ غږ سره تمثیل کړي، وروسته ډیالوګ یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ.
- له زده کوونکو نه په ځانګړې توګه وغواړئ چې د ١١٣ مخ د Excercise د برخې پوښتنې د خپلو ځانونو سره ولولي او د درې ورکړل شویو ځوابونو نه یو یې وټاکي، خو لومړی تاسې یوه پوښتنه په عملي توګه له زده کوونکو سره یو ځای کار وکړئ، ترڅو زده کوونکي ښه پوه شي.

- له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې یوه پوښتمه په لوړ غږ سره ولولي او له هغه نه یې چې دایره تاوه کړې ده ووایي. په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړي حق او نوبت بل زده کوونکي ته ورکړئ.
- د ۱۱۳ مخ د Listen and Repeat د برخې کلمې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.
- کلمې یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او د ځل د زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو نه وغواړئ چې کلمې په لوړ غږ سره ولولي، په پای کې یو ځل بیا کلمې په لوړ غږ سره ولولي او ویې ژباړي.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

1- په پورتنی محاوره کې چاغوښتل چې ډکترشی؟

2- دا جمله وژباړئ: You are good at Science. Why don't you study pharmacy?

3- What do you do? په پښتو معنا کړئ.

4- ځینی کارونه موچی زده کړی دی نومونه ئی ووائي؟

5- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نننې لوست کې یو ډیالوګ ولوست او همدارنګه مو د Nurse، Gardner، Teacher، Shopkeeper، Mechanic، Painter کلمې د هغوی له معنا سره ولوستلې.

**کورنی دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۱۳ مخ د Listen and Repeat د برخې کلمې دوه دوه ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## Unit Eleven

## Lesson two

**مخونه:**۱۱۰-۱۱۱

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

1- زده کوونکي متن په سمه توګه ولولي.

2- د متن په معنا او مفهوم پوه او درک کړي.

3- کارونه وپېژني او په خپل ژوند کې د حرفې او کار په اهمیت پوه شي.

4- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په خپلو ورځنیو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** په زړه پورې Interesting، تشریح کول Describe، دنده Job، غوا Cow، ډوډۍ ورکول Feed، جوار Corn، پرې کول Cut، Hair Dresser دویښتانو جوړونکی.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د تېر لوست ارزوځخه په لاندینیو پوښتنو سره وکړئ:

- د دې کلمو معنا ووایاست؟ Shopkeeper، Painter، Nurse، Gardner، Teacher، Pharmacy.

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ، چې څه غواړې په راتلونکي کې څه کاره اوسې او ولې؟
- د ۱۱٤ مخ د It is time to read د برخې متن په لوړ غږ ولولئ او زده کوونکي دې تاسې ته په کراره غوږ ونیسي، وروسته زده کوونکو ته څو دقیقې وخت ورکړئ چې متن د خپلو ځانونو سره په پټه خوله ولولي او هغه کلمې چې په معنا او تلفظ کې یې ستونزې ولري په نښه کړئ.
- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن په لوړ غږ سره ولولي، وروسته یو ځل بیا متن په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته څو دقیقې وخت ورکړئ، چې د Ask and Answerد برخې فعالیت د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي، د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي او بل دویم زده

| |
|---|
| کوونکي د متن نه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکوي، وروسته د ټولګي د مختلفو موقعیتونو نه وغواړئ چې دا فعالیت په لوړ غږ سره سرته ورسوي.<br>- د ۱۱۵ مخ د Look and Read د برخې جملې په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.<br>- جملې یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې په لوړ غږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کولو کې مرسته وکړئ، په پای کې یو ځل بیا جملې په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ. |
| **ارزونه:** لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- شاکر غواړی چې په راتلونکی کې څه شی شی؟<br>۲- آیا نسیم ډاکټر و؟<br>۳- کوم کارونه استاسی دیر خوښیږی؟<br>۵- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې یو متن د څه کار کوئ په هکله ولوست او همدارنګه مو ساده جملې د حرفې او شغل (کار) په هکله و لوستلې. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۱۵ مخ د Look and Read د برخې جملې دوه دوه وارې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Eleven

## Lesson three

**مخونه:**۱۱۲-۱۱۳

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

۱- زده کوونکي کارونه وپېژني او د هغو په هکله پوښتنې وکړي او ځوابونه ورکړي.

۲- کارونه د انځورونو له مخې وپېژني د کارونو نومونه ولیکلي شي.

٤- د کارونو نومونه سپېل کړای شي د کار لرلو په اهمیت پوه شي.

٦- نوي کلمې په خپلو ورځنیو خبرو اترو کې استعمال کړای شي.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه نفري

**د لوست مرستندویه توکي:** فلش کارتونه، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**تېر لوست په لاندینیو پوښتنو سره وارزوئ:

- د He is shopkeeper جملې معنا په پښتو څه ده؟
- څوک په انګلیسي وایي ((زه یو ډاکټر یم.))؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- کوم کارونه مو دیر خوښیږی چې سرته ورسوئ.
- د ۱۱٦ مخ writing د برخې پوښتنې یو وار په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي. وروسته زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د انځورونو په هکله ورکړل شویو پوښتنو ته په خپلو کتابچو کې ځوابونه ورکړي او ویې لیکي.
- له زده کوونکو نه دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې د Writing د برخې فعالیت په لوړ غږ سره ترسره کړي. د مثال په توګه یو زده کوونکی یوه پوښتنه کوي او دویم زده کوونکي په ځواب کې د انځور په هکله لیکلې جمله وایي.

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۱۷ مخ د Spellingد برخې فعالیت د خپل نږدې ملګري سره د ورکړل شوي مثال سره سم کار وکړي. د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي How do you spell cook? دویم زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د cookکلمه دې په تخته باندې ولیکي په هغه صورت کې چې دویم زده کوونکي په لیکلو کې غلطي وکړه بل زده کوونکي ته غږ وکړئ، ترڅو کلمه د تختې پر مخ ولیکي.

| |
|---|
| **ارزونه:** هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>۱- څرنګه کولای شو، له یوه ملګري څخه وپوښتو چې د Doctor کلمه سپېل کړي؟<br>۲- د ښونکی کلمه په انګلیسی سپیل کړی.<br>۳- آیا کولای شئ د Nurse کلمه سپېل کړئ؟<br>٤- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې د کارونو په هکله جملې ولیکلی او همدارنګه مو د ځینو کارونو سپېلونه وکړل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۱٦ مخ د Writingد برخې پوښتنې د ځوابونو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Eleven

## Lesson four

**مخونه: ۱۱۴–۱۱۵**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

۱– شعر په سمه توګه ولولي د شعر معنا او مفهوم درک کړي.

۳– پوښتنو ته په سمه توګه ځوابونه ورکړي.

٤– د کارونو په هکله پوښتنې وکړي او ځوابونه ورکړي.

٥– د نویو کلمو په معنا پوه شي او په خپلو ورځنیو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه :**sunshine د لمر وړانګې، Purple بانجاني، Patence صبر او حوصله، Send لیږل.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**تیر لوست په لاندینیو پوښتنو سره وارزوئ:

- د Mechanic او Nurse کلمې سپېل کړي.
- په انګلیسي ووایاست هغه یو رنګمال دی.

د انګیزې د پیدا کېدو په هیله او د نوي لوست د زده کړې لپاره لاندې پوښتنې وکړئ:

- د ډاکټر کلمه په انګلیسي تورو سره ولیکي.
- آیا تر اوسه مو کوم شعر په انګلیسي لوستلی دی؟

- د ۱۱۸ مخ د Reading د برخې شعر په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسئ، یو ځل بیا شعر په لوړ غږ سره ولولئ او دا ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ چې شعر تاسې سره یو ځای ولولي.
- له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې شعر په لوړ غږ سره ولولي، وروسته شعر یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۱۸ مخ د Ask and Answer د برخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي، د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه وايي او دویم زده کوونکي د شعر څخه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکوي، وروسته د ټولګي د مختلفو ځایونو له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا فعالیت په لوړ غږ سره سرته ورسوي او تاسې له هغوی سره

| |
|---|
| د ځواب په ورکولو کې مرسته وکړئ.<br>- د ۱۱۹ مخ Listen and repeat د برخې جملې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځير سره غوږ ونيسي.<br>- جملې يو ځل بيا په لوړ غږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره يې يو ځای تکرار کړي، وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا فعاليت د خپل نږدې ملګري سره تمرين کړي، د مثال په توګه: يو زده کوونکي پوښتنه کوي او دويم زده کوونکي ځواب ورکوي.<br>- له زده کوونکو څخه د دوه کسيزو ډلو په توګه د ټولګي د مختلفو ځايونو څخه وغواړئ چې دا فعاليت، لکه څرنګه يې چې د خپل نږدې ملګري سره کار وکړ په لوړ غږ سره سرته ورسوي. |
| **ارزونه:** زده کوونکي د لاندينيو پوښتنو په ذريعه وارزوئ:<br>۲- د شعر معنا او مفهوم بيان کړئ.<br>۳- چې د Cook او Painter کلمې په جملو کې استعمال کړي.<br>٤- آيا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نني لوست کې يو شعر زما معلم يا ښوونکي په هکله ولوست او همدارنګه مو ځينې جملې د کارونو په هکله ولوستلې. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۱۹ مخ د Listen and Repeat د برخې جملې په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## Unit Eleven

## Lesson five

**مخونه:**۱۱۶-۱۱۷

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**

**زده کوونکی د لوست په پای کې وکولای شي.**

۱- د کار په هکله یو له بل نه پوښتنې وکړي.

۲- د Do او Does په هکله وپوهیږي او پوښتنې ته ځواب ووايي.

٤- متن په سمه توګه ولولي او پوښتنو ته ځوابونه ووايي.

٥- د متن په معنا او مفهوم پوه شي او درک يې کړي.

٦- په خپل ژوندانه کې د کار د لرلو په اهمیت پوه شي.

**نوي لغتونه**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**تیر لوست په لاندینیو پوښتنو سره ارزیابي کړئ:

- د تیر لوست شعر د کومې موضوع په هکله و؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- له یوه ملګري څخه وغواړئ چې ووایي څه کاره دی؟

- د ۱۲۰ مخ د Listen and Repeat د برخې جملې په لوړ غږ سره ولولئ او زده کوونکي دې له تاسې څخه وروسته هغه تکرار کړي، وروسته جملې معنا کړئ او زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې نوموړې جملې د دوه کسیزو ډلو په توګه د پوښتنې او ځواب ورکولو په طریقې سره تمرین کړي، چې لومړی زده کوونکي پوښتنه وکړي او دویم زده کوونکي د هغه پوښتنې ته ځواب ووايي.
- د To do او To be د فعلونو د استعمال طریقه د ضمیرونو سره په لنډه توګه زده کوونکو ته تشریح کړئ او په ساده او آسانه مثالونو کې هغوی ته په عملي توګه وروښایاست.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲۰ مخ د Your turn د برخې جملې د Do, does, am, is, are کلمې سره بشپړې کړي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ، هغه جملې چې یې بشپړې کړې دي د خپل نږدې ملګري سره

تمرین کړي، د مثال په توګه لومړی زده کوونکي پوښتنه کوي او دویم زده کوونکي ځواب وایي، وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ، چې په دوه کسیزه توګه دا فعالیت په لوړ غږ سره ولولي. په هغه صورت کې چې یو له هغو څخه غلطي کړې وه وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ او تاسې له هغوی سره مرسته وکړئ.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲۱ مخ د Read and Wrtite د برخې جملې د ځانونو سره په پټه خوله ولولي او ورکړل شوې پوښتنې د متنونو په هکله ځواب ورکړي، لومړی تاسې متنونه په لوړ غږ ولولئ.

له څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ، چې متنونه په لوړ غږ سره ولولي، وروسته له څو زده کوونکو څخه د دوه نفري ډلو په توګه وغواړئ، چې پوښتنې یې په لوړ غږ سره تکرار کړي، د مثال په توګه یو زده کوونکي پوښتنه کوي او بل زده کوونکي ځواب ورکوي، چې مخکې یې لیکلی دي لولي په هغه صورت کې چې دویم زده کوونکي غلطي وکړې وي او ځواب یې سم ورنکړای شو د بل زده کوونکي څخه وغواړئ چې خپل ځواب ولولي.

**ارزونه:** هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

۱- د Do د فعل سره یوه پوښتنه وکړئ؟

۲- د Isپه فعل سره یوه جمله ووایي؟

۳- د اولې شمېرې لوستل د څه شي په باره کې و، بیان یې کړئ؟

٤- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نني لوست کې د Do او Does فعلوڅخه د پوښتنو په جملو کې او فعلونه Is, am, are د بیانیې په جملو کې ولوستل.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲۰ مخ د Your Turn جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# Unit Twelve
## Lesson one

**مخونه:**۱۱۸-۱۱۹

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې: زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:**

۱- ډیالوګ په سمه توګه ولولي.

۲- سمې او ناسمې جملې یو له بل سره توپیر کړای شي.

۳- رنګونه وپېژني اود رنګونو نومونه ووایي.

٦- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه :** خاورین Gray، سپین White، آبي Blue، زېړ Yellow، سور Red، تور Black.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**تېر لوست په لاندینیو پوښتنو سره وارزوئ:

- د Do او Does په کلمو سره د پوښتنې یوه یوه جمله جوړ کړئ؟
- د Is, am, are په کلمو سره یوه یوه جمله د بیانیې په بڼه جوړه کړئ؟

د انګیزې د پیدا کیدو په هیله له زده کوونکوڅخه لاندې پوښتنې وکړئ.

- کوم رنګونه مو ډېر خوښېږي؟
- کوم شکلونه مو ډېر خوښېږي؟

- د ۱۲۳ مخ د ډیالوګ برخه په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي، وروسته زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې ډیالوګ د خپل نږدې ملګري سره په کراره کار وکړي او هغه کلمې چې په معنا یې نه پوهیږي او یا د هغو په تلفظ کولو کې ستونزې ولري په نښه کړي.
- له زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه د ټولګي د مختلفو ځایونو څخه وغواړئ چې ډیالوګ په لوړ غږ سره ترسره کړي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ، وروسته ډیالوګ یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲٤ مخ د True or False د برخې جملې د خپلو ځانونو سره په پټه خوله ولولي او سمې جملې د Tپه لین کې او ناسمې د F په لین کې په نښه کړي، وروسته له هغه له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې په لوړ غږ سره ولولي او ووایي چې سمه وه او که غلطه.

<table>
<tr><td>

- د ۱۲٤ مخ د Listen and Repeat د برخې کلمې په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ، چې په ځیر سره غوږ ونیسي.
- کلمې یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ، چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ، چې کلمې په لوړ غږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ، په پای کې یو ځل بیا کلمې په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ.

</td></tr>
<tr><td>

**ارزونه:** هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

۱- امیر څو ډوله رنګونه وپېژندل؟

۲- سور رنګ ته په انګلیسي کې څه وايي؟

۳- د کومې مېوې رنګ نارنجي دی؟

</td></tr>
<tr><td>

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نني لوست کې یو ډیالوګ ولوست او همدارنګه مو د ځینو رنګونو نومونه، لکه Blue, White, Black, Red, Yellow او Orange ولوستل.

</td></tr>
<tr><td>

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲٤ مخ د Listen and Repeat د برخې کلمې درې درې واره په خپلو کتابچو کې ولیکي.

</td></tr>
</table>

## Unit Twelve

## Lesson two

**مخونه:** ۱۲۰-۱۲۱

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې: زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:**

۱- شعر په سمه توګه ولولي او د شعر په مفهوم پوه شي.

۳- د رنګونو نومونه په سمه توګه ولولي او د رنګونو په اهمیت پوه شي.

۵- ځینې هندسي شکلونه وپېژني او د هندسي شکلونو نومونه واخلي.

۷- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:**Line خط، Circle دایره، Triangle مثلث، Oval بیضوي، Rectangle مربع، Diamond نوري.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړې

**د لوست مرستندویه توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**تېر لوست په لاندینیو پوښتنو سره وارزوئ:

- څو ډوله رنګونه پېژنئ؟
- سپین او زیړ رنګونو ته په انګلیسي کې څه وایي؟

د انګېزې د پیدا کېدلو په هیله له زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړئ:

- ستاسې د خوښې رنګ کوم یو دی؟

- د ۱۲۵ مخ د It is time to read د برخې شعر په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي.
- شعر یو ځل بیا په لوړ غږ سره ولولئ او دا ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې شعر په لوړ غږ سره ولولي، په پای کې شعر یو ځل بیا په لوړ غږ سره ولولئ او ویې ژباړئ.
- د شعر څخه لاندې جملې په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ، چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ، چې جملې په لوړ غږ سره ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي.
- کلمې یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې سره یې

| |
|---|
| یو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ، چې کلمې په لوړ غږ سره ولولي په پای کې کلمې یو ځل بیا په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړئ.<br>- د ۱۲٦ مخ د B د برخې جملې په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ، چې په ځیر سره غوږ ونیسي، وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ، چې جملې په لوړ غږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ، په پای کې جملې یو ځل بیا په لوړ غږ سره ولولئ او ویې ژباړئ. |
| **ارزونه:** هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>۱- د هندسی شکلونوڅو ډولونه چې پیژنی په انګلیسی یې نومونه واخلی.<br>۲- د پورتنې شعرمفهوم ووایاست.<br>٤- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې د څو ډولو رنګونو نومونه زده کړل: لکه Blue, Red, Brown, White, Black, Purple, Pink, Gray, Line, Circle, Triangle, Rectangle, Oval, Diamond همدارنګه مو ځینې هندسي شکلونه هم زده کړل او ولوستل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲٦ مخ د Bد برخې او جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Twelve

## Lesson three

**مخونه:**۱۲۲-۱۲۳

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې: زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:**

۱- رنګونه وپېژني او انځور رنګه کړای شي.

۳- د رنګونو په هکله جمله ولیکي.

٤- هندسي شکلونه وپېژني او نومونه یې واخلي.

٥- د هندسي شکلونو نومونه ولیکلای شي.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** فلش کارټ، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**تېر لوست په لاندینیو پوښتنو سره وارزوئ:

- دایرې ته په انګلیسي کې څه وایي؟
- د Brown, Pink, Wink کلمې په پښتو معنا کړئ؟

د انګېزې د پیدا کېدلو په هیله له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:

- آیا تر اوسه مو رسامي کړې ده؟
- څو ډوله هندسي شکلونه پېژنئ؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲۷ مخ د Writing د برخې انځور په ځانګړې توګه په خپلو کتابچو کې رسم کړئ او رنګه یې کړي، که زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کېږي، مرسته ورسره وکړئ. په پای کې له زده کوونکو څخه وغواړئ، چې خپل نومونه په خپلو رسمونو کې ولیکي او بیا یې په دیوال پورې وځړوي.

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲۷ مخ د B د برخې موضوع په ځانګړې توګه کار وکړي او د هغو رنګونو په هکله چې په رسامۍ کې ترېنه کار اخیستي د مثال سره سم پنځه جملې ولیکي، وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله په لوړ غږ سره ولولي.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲۸ مخ د C د برخې جملې د انځورونو په نومونو سره بشپړې کړي، وروسته له هغې څخه د زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ، چې یوه یوه جمله په لوړ غږ سره ولولي، په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه د انځور نوم غلط لیکلی و، وخت او موقع بل زده کوونکي ته ورکړئ.

| **ارزونه:** هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>۱- د سور، آبي، نصواري، تور او بانجاني رنګونو نومونه په انګلیسي ولیکئ؟<br>۲- د دایرې، مثلث او بیضوي کلمو ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>۳- په نني رسم کې مو د څو ډولو رنګونو څخه ګټه اخیستلې وه، نومونه یې واخلئ؟<br>٤- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
| --- |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې د رنګونو نومونه او هندسي شکلونه زده کړل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې د ۱۲۸ مخ د C د برخې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit twelve
## Lesson four

**مخونه:**124-125

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- د مختلفو ډولونو او شکلونو شعرونه په سمه توګه ولولئ.

2- د هندسي شکلونو نومونه ولولي.

3- د میوورنګو نه وپیژني.

4- زده کوونکي د دې لوست د نوې کلمو څخه په پخپلو ورځنیو خبرواتروکې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو له کولو سره وارزوئ:

- یو مثلث پر تخته رسم کړئ.
- د څو رنګونو نومونه په انګلیسي ووایي؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- څو ډوله هندسی شکلونه پیژنئ؟
- میوې په کومو رنګونو سره پیدا اکیږی؟

- د 129 مخ د Let’s read د برخې شعر په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي.
- شعریو ځل بیا ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې شعر په لوړغږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په ویلو او تلفظ کې مرسته وکړئ په پای کې شعر یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د 129 مخ Ask and answer د برخې پوښتنی د خپل نږدې ملګري سره کار وکړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه د ټولګي د مختلفو برخو نه وغواړئ چې دا فعالیت په لوړغږ سره سرته ورسوي.
- له زده کوونکو نه وغواړئ چې د 130 مخ د Exercise د برخې فعالیت دور کړل شوی مثال

| |
|---|
| سره سم د خپل نږدې ملګري سره په کراره کار وکړي. خو لومړی تاسې ورکړل شوی یو مثال له زده کوونکو سره په عملي توګه کار وکړئ.<br>- له زده کوونکونه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې د Exercise د برخې فعالیت په لوړغږ سره کار وکړی.<br>- د Fun with words د برخې فعالیت زده کوونکو ته تشریح کړئ اووایئې چې لومړی زده کوونکي د یوه رنګ نوم ووایي او دویم زده کوونکي دې د همدې ویل شوي رنګ نوم ووایي او وروسته بیا د خپل رنګ نوم ووایي چې په دی ترتیب سره په ځنځیري توګه ټول زده کوونکي په دې فعالیت کې برخه واخلی له دې امله چې د رنګونو نومونه لږدی اجازه ورکړئ د دوه یا درې رنګونو د ویلونه وروسته لومړی او دوهم رنګوڅخه تکرار کړئ او تاسې له هغوی سره د رنګونو په یاد را وړلوکی مرسته وکړئ خو پام وئړی چې تول رنګونه یادنه کړئ پریږدئ چې ټول زده کوونکي په سمه توګه فکر وکړي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنی چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د پورتنې شعر مفهوم په لنډه ټوکه بیان کړی؟<br>2- مستطیل ته په انګلیسي کېڅه وایي؟<br>3- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی ننني لوست کې د ځینو هندسي شکلونو نومونه او همدارنګه د ځینو میو و رنګونه ولوستل او وپیژندل. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Let’s read دبرخې یو شعر پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit twelve
## Lesson five

**مخونه:**127-126

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- رنګونه او هندسي شکلونه وپیژني؟

2- د هندسي شکلونو نومونه ولیکلی شي؟

3- د هندسي شکلونو نومونه په سمه توګه سپیل کړای شي.

4- د هندسي شکلونو نومونه په سمه توګه ولولي.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په کولو سره وارزوئ:

- د مثلث اړوند شعر په پښتو ژبه وژباړئ.
- د هندسی څو ډوله شکلونه پیژنۍ؟

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- هندسې شکلونه د کومو موخو لپاره استعمالیږي.

- زده کوونکو تـه لارښـوونه وکـړئ چـې د 131 مـخ د Look , read, and circle د برخـې جملې له ځان سره په پټه خو له ولولي او د هر انځور په هکله له سمې جملـې څخـه دایـره تـاوه کړي.
- له زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د هرانځور لاندې جملې په لوړغږ سـره ولـولي او هغه جمله یې چې په نښه کړې ده ووایي.
- زده کوونکي په دوو ډلوویشئ او هره ډله دې د یو رنګ په نوم و نوموئ یا یې یاده کړئ چـې د 131 مخ د Spelling د برخې فعالیت په رقابتي توګه یو د بـل سـره کـار وکـړئ د مثـال پـه توګه: دشنی ډلې یو زده کوونکي پوښتنه کوي ?How do you Spell line دسرې ډلې زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او د Line کلمه په تخته لیکي او همدارنګه تخته په دوه برخو وویشئ چې و کولای شئ هرې ډلې ته نمرې ورکـړې ترڅـو زده کـوونکي و هڅیـږي د کلمـو سپیل په ښه توګه ذهن ته وسپاړي

| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- مربع څه ډول شکل لري او په انګلیسي کې ورته څه وایې؟<br>2- د Triangle , Rectriangle کلمی په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>3- په نني لوست کې موځو ډوله شکلونه او رنګونه زده کړل؟ |
| --- |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې لوبې، د کلمو او رنګونو سره تکرار کړې او همدارنګه مو د شکلونو په هکله جملې ولوستلې. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Look read and circle د برخې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit thirteen
## Lesson one

**مخونه:**128-129

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- محاوره په سمه توګه ولولي.

2- د محاورې معنا او مفهوم درک کړي.

3- د نوی کلمو معنا باندې پوه شي.

**نوي لغتونه :** هیواد Country پایتخت Capital ولایت Province غرMountain ټولنیزی زده کړې Social studies علاقه مندInterested سیندRiver

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په کولو سره وارزوئ:

- آیا کولای شئ دا کلمې سپیل کړئ: ?Triangle circle diamond، rectangle,oval
- د څو رنګونو نومونه په انګلیسي ووایي.

د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- د افغانستان پایتخت چیرې دی؟
- آیا په غرونو کې ګرځیدلي یاست؟

- د 133 مخ دیالوګ په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې تاسې ته غوږونیسي. وروسته له زده کوونکو ته وغواړئ چې ډیالوګ د خپل نږدې ملګري سره په کراره ولولي او هغه کلمې چې په معنا یې نه پوهیږي او یایې په تلفظ کې ستونزې ولري په نښه کړي.
- له زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه د ټولګي د مختلفو ځایونو نه وغواړئ چې ډیالوګ په لوړغږ سره تمثیل کړي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ په پای کې دیالوګ یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړی.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 143 مخ د Ask and answer دبرخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره تمرین وکړي. د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي او دویم زده کوونکي د مخکینی پاڼې ډیالوګ نه په ګتې اخیستلو سره ځواب ورکوي. وروسته د زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه د ټولګي د مختلفو برخو نه وغواړئ چې دا تمرین په

| |
|---|
| لوړغږ سره سرته ورسوي او تاسی هم د ځینو زده کوونکو سره په ځواب ورکولو کې مرسته وکړئ.<br>- 134 مخ د Listen and repeat د برخې کلمې په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسيي.<br>- کلمی د دویم ځل لپاره په لوړغږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو نه وغواړئ چې له تاس سره کلمی یو ځای تکرار کړي، وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې کلمې په لوړغږ سره ولولي او تاسې هم د هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ په پای کې کلمې یو ځل بیا ولولئ او ویې ژباړئ. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- زیبا د کومو مضمونو سره ډیره مینه درلوده؟<br>2- پایتخت او ولایت ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>3- River او Countryته په پښتو کې څه وایي؟<br>4- Social studies څه ډول یو مضمون دی؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په نني لوست کې یو ډیالوګ ولوست او همدارنګه مو د Country, Capital, Province, Jungle, River او Mountain کلمې زده کړې. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 134 مخ د Listen and repeat کلمې درې وارې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit thirteen
## Lesson two

**مخونه130–131**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- متن په سمه توګه ولولي.

2- افغانستان زیات وپیژني.

3- د خپل هیواد اهمیت درک کړي.

4- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبرواترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګاني:** د وچې پورې تړلې Land lock مرکزي Central ګاونډیتوب Neighboring شمال ختیځ North east شمال غرب( لویدیځ) North west جنوب South

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو له کولو سره وارزوئ:

- دا کلمې په پښتو څه معنا ورکوي Capital, River, Social, province او Mountain د انګیزې د پیدا کیدو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.
- د محاورې لنډیز بیان کړی.
- آیا د افغانستان ګاونډیان پیژنې؟
- د افغانستان کومو ولایتونو ته مو سفر کړی دی؟

- د 135 مخ د It is time to read د برخې متن په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسی وروسته هغوی ته لارښوونه وکړئ چې متن د خپلو ځانونو سره په پټه خو له ولولي او هغه کلمې چې په معنا یې نه پوهیږي او یایې په تلفظ کې ستونزې ولري په نښه کړیې.
- له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې متن په لوړغږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ په پای کې متن یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او ویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د 135 مخ دTrue or False د برخې جملې له ځان سره په پټه خو له ولولي او سمې جملې د T په لین او ناسمې جملې د F په لین کې په نښه کړي وروسته

له هغوی نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله په لوړغږ سره ولولي او ووایي چې جمله یې سمه وه او که ناسمه.

- د 136 مخ د Listen and repeat د برخې جملې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې له تاسې سره یو ځای تکرار کړي، وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې یو ځل بیا په لوړغږ ولولي په پای کې جملې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 136 مخ د Your turn د برخې فعالیت د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي د مثال په توګه: یو زده کوونکي یوه جمله دCountry د کلمې لپاره جوړوي او بل زده کوونکي د Capital لپاره جمله جوړوي په همدې ترتیب هغوې دې کارته ادامه ورکوي. ترڅو چې هریوېې دیوې کلمې لپاره درې درې جملې جوړې کړي.
- له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله د شپږو کلمو د Your turn د برخې لپاره په لوړغږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو او جملو په ویلو کې مرسته وکړئ.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

1- څوک دا جمله په پښتو ژبه وژباړي؟ Afghanistan is an Islamic and beautiful country.

2- څوک دJungle اوmountain کلمو ته جملې جوړوي؟

3- آیا افغانستان د څو ولایتونو لرونکی دی؟

4- آیا هیواد مودرته اهمیت لری؟ او ولې؟

5- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پوری ؤ؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په ننني لوست کې خپل هیواد افغانستان سره زیات بلد شوئ.

**کورنی دنده**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 136 مخ د Your turn د برخې کلمې لپاره دوه دوه جملې جوړې کړي او پخپلو کتابچو کې یې ولیکي.

## Unit thirteen
## Lesson three

**مخونه**133-132

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- د افغانستان په هکله ښه بلد شي.

2- پوښتنو ته ځوابونه ووايي.

3- جملو او کلمې په ورځنيو خبرواترو کې استعمال کړي.

**نوي**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنيو پوښتنو له کولو سره وارزوئ:

- غر او سيند ته په انګليسي کې څه وايي.
- د تير لوست لنډيز په شفاهی توګه بيان کړی.

د انګيزې د پيدا کيدلو او د نوي لوست د زده کړې په هيله لاندې پوښتنې وکړئ.

- د غراو ځنګل انځورونه زده کوونکو ته وښاياست او له هغوی نه وپوښتئ چه دې شيانو ته په انګليسي کې څه وايي؟

- د 137 مخ د Writing د برخې کلمې په لوړغږ سره ولولئ او د زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځير سره غوږونيسئ وروسته له زده کوونکو نه وغواړئ چې کلمې له ځان سره په پټه خوله ولولي او هره کلمه په یوه جمله کې استعمال او پخپلو کتابچو کې يې وليکی. وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې يوه يوه جمله په لوړغږ سره ولولي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه جمله غلطه ليکلې وه ، د بل زده کوونکي نه وغواړئ چې خپله جمله ولولي.
- زده کووونکو ته لارښوونه وکړئ چې د B د برخې متن له ځان سره په پټه خوله ولولي او تش ځايونه يې د متن نه په ګټې اخيستلو سره په پنسل بشپړې کړي. وروسته له زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د متن يوه يوه جمله په لوړغږ سره ولولي. په هغه صورت کې چې یو له هغو څخه د جملی تش ځای په غلطې کلمې سره ډکه کړې وه واربل زده کوونکي ته ورکړئ .

| |
|---|
| - زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 138 مخ د C د برخې پوښتنې د خپلو ځانونو سره په پټه خوله ولولي او هغو ته پخپلو کتابچو کې ځوابونه ورکړي.<br>- له زده کوونکو نه په دوه کسیزه توګه وغواړئ چې د C د برخې فعالیت په لوړ غږ سره ترسره کړي. د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي او بل زده کوونکي ځواب ورکوي. کوم چې په کتابچه کې لیکلي دي. په هغه صورت کې چې د دوهم زده کوونکي ځواب صحیح څخه ؤ د بل زده کوونکي نه وغواړئ چې نوموړئ پوښتنې ته ځوابووايي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- یوه جمله د افغانستان په باره کې په تخته ولیکي؟<br>2- د Country, Capital, Province کلمې په پښتو څه معنا ورکوي؟<br>3- چین د افغانستان کومې خواته پروت دی؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننې لوست کې نوې کلمې چې په تېرو لوستونو کې مو لوستلې وې په جملو کې استعمال کړې. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 13 مخ د C د برخې پوښتنې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit thirteen
## Lesson four

**مخونه134-135**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- د خپل هیواد ملي سرود وپیژني.

2- ملي سرود ولولي او ویې ویلای شي.

3- د نوی کلمو په معنی پوه شي.

**نوي لغتونه او اصطلاح ګانې:** افتخار Pride سوله Peace قوم Tribe ځلیدل Shine

خدای تعالی لوی او لوړ مقام خاوند دی. Allah is the greatest

**د لوست د تدریس میتودونه:** دوه کسیزه او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| **فعالیتونه:**<br>تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په کولو سره وارزوئ:<br>- هغه کلمې چې مو په تېر لوست کې لوستلی دي نومونه یې واخلئ؟<br>- د Mountain په کلمې سره یوه جمله جوړه کړئ؟<br>د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.<br>- د هیواد ملي سرود د چا په یاد دی؟<br>- آیا موافقه لرئ چې خپل ملي سرود په ګډه سره ووایو؟<br>- د 139 مخ د Let's sing د برخې ملی سرود په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسی ته په ځیر سره غوږونیسي. وروسته زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې ملي سرود له ځان سره په پټه خوله ولولي.<br>- ملی سرود په لوړ غږ سره ولولئ او دا ځل له زده کوونکو نه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي. وروسته له زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د ملی سرود یوه یوه جمله په جلاجلا توګه ولولي.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې ټول یو ځای ملی سرود په لوړغږ سره ولولي. |
|---|
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د هیواد ملی سرود مفهوم تشریح کړي. |

| 2- د دی لوست نوی کلمی نومونه ووایاست. |
| --- |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسی په نني لوست کې د خپل هیواد ملی سرود زده کړ. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې ملی سرود په یادو یاد کړي او پخپلو کتابچو کې یې ولیکي. |

**Unit thirteen**
**Lesson five**

**مخونه136-137**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- کلمې له انځورونو سره ربط ورکړي.

2- ساده جملې ولولي.

3- ساده او آسانه کلمې سپیل کړي اوویې لیکي.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړي او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په کولو سره وارزوئ:

- دهیواد، ملی سرود په ساده ژبه بیان کړئ؟
- ملی سرود په کومو ورځوکې ویل کیږي؟

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا افغانستان یو زراعتي هیواد دی؟
- د افغانستان پایتخت څه نوم لري؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 140 مخ د Look and match برخه له ځان سره په پټه خو له ولولي او د اړوند و انځورو نو سره یې ونښلوي او ربط ورکړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه کلمه په لوړغږ سره ولولي او انځورونه پکې وښايي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلط انځور وښود د بل زده کوونکي نه وغواړئ چې یوه کلمه ووايي او انځورېې وښايي.
- د 140 مخ د Look and read د برخې جملې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړی وروسته له څو زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې جملې په لوړ غږ ولولي.
- زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د 141 مخ د Fun with words د برخې کلمې چې یې ترتیبه لیکل شوي دي د خپلو ځانونو سره په پټه خو له ولولي او د ورکړل شوي مثال سره سم په معنا لرونکو کلمو بدلې او ترتیب کړي. وروسته له هغوی نه په ځانګړی توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي یوه یوه کلمه د تختې پر مخ ولیکي په هغه صورت کې چې یو له هغو

| |
|---|
| څخه غلطي وکړي. وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ چې سمه کلمه ولیکي.<br>- له زده کوونکو نه وغواړئ چې د 141 مخ د Spelling د برخې انځورونه له ځان سره په پټه خوله ولولي او سپیل یې کړي د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي.<br>?How do you spell country او دویم زده کوونکي Country سپیل کوي او د تختې مخې ته راځي او پر تخته یې لیکي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د هیواد، ولایت، سیند او غره کلمې په انګلیسي ژبه ولیکئ؟<br>2- یوه جمله د افغانستان په هکله په انګلیسي ولیکی؟<br>3- ایا ننني لوست تاسې ته په زړه پوری ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې د افغانستان په هکله زیات معلومات زده کړل. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 140 مخ د Look and read د برخې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Fourteen

## Lesson one

**مخونه138-139**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- محاوره په سمه توګه ولولي.

2- موزیم وپیژني او هغې سره مینه پیدا کړي.

3- هنري اثرونه وپیژني او له هغی سره مینه پیدا کړي.

4- د نویو کلمو په معنا پوه شي او هغه پخپلو ورځنیو خبرواترو کې استعمال کړي.

**نوي لغتونه:** قدر او عزت کول Appreciate ګران او قیمته Preious نیکونه Fore fathersملی موزیم National museam سیکه Coin شکرایستونکی Thank ful

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په کولو سره وارزوئ:

- لاندنی کلمې په پښتو معنا کړئ:Jungle, River, Capital, Mountain
- Who swim in the river?دا جمله معنا کړئ

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا د هنر سره بلدتیا لرئ؟
- آیا تر اوسه موزیم ته تللي یاست؟

- د 143 مخ محاوره په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږونیسي. وروسته هغوی ته لارښوونه وکړئ چې محاوره د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي او هغه کلمې چې په معنا یې نه پوهیږي او یا یې په تلفظ کې ستونزې ولري په نښه یې کړي.
- د ټولګي د مختلفو ځایونو له زده کوونکو نه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې په لوړغږ سره تمرین ترسره کړي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ په پای کې محاوره یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې محاوره د خپل نږدې ملګري سره تمرین او تمثیل کړي او د 144 مخ د Ask and answer د برخې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي. د مثال په توګه: یو زده

| |
|---|
| کوونکي پوښتنه کوي او دویم زده کوونکي د محاوري نه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکوي.<br>په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه ځواب ورنکړای شو، د بل زده کوونکي نه وغواړئ چې پوښتنې ته ځواب ورکړي.<br>- د 144 مخ د Listen and repeat د برخې کلمې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.<br>- کلمې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو نه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو نه وغواړئ چې کلمې په لوړغږ سره ولولي په پای کې کلمې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د پورتنی محاوری مفهوم بیان کړي.<br>2- موزیم څه ډول یو ځای دی؟<br>3- نقاشی او موزیک ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>4- آیا نقاشي هم دلرغونو آثارو یوه برخه ده؟<br>5- دلاندې کلمو معنا ووایي؟Coin, precious, fourteenth<br>6- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پوری ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې یوه محاوره د موزیم ته د تللو په هکله و لوستله او همدارنګه مو د Museum, Sewing, Hand craft, Music, Scluptur, او Painting کلمې ولوستلې او په معنا یې پوه شوئ. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 144 مخ د Listen and repeat د برخې کلمې درې درې واري پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Fourteen
## Lesson two

**مخونه 140-141**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- متن په سمه توګه ولولي.

2- د متن په مفهوم پوه شي.

3- هنر وپیژني او دهغې سره مینه پیدا کړي.

4- د نویو کلمو په معنا پوه شي او هغه په ورځنیو خبرواتروکې استعمال کړي.

**نوي لغتونه :**پاچا King اجراوحایزه Reward رښتیاTruth رسمولDraw ړوند Blind زندانJail قهر Angry جزا ورکولPunish برعزتیDishonor

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو له کولو سره وارزوئ:

- د تیر لوست د محاوری موخی بیان کړي.
- Munseum او Painting ته په انګلیسي کې څه وایي؟

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا له نقاشی سره آشنایي او بلدتیا لرئ؟
- د افغانستان لرغونی آثار په کوم ځای کې ډیر دی؟

- د 145 مخ د It is time to read دبرخې متن په لوړغږ سره ولولی او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي. وروسته هغوی ته لارښوونه وکړئ چې متن له ځان سره په پټه خو له ولولي او له هغو کلمو څخه چې په معنا یې نه پوهیږي او یا یې په تلفظ کولو کې ستونزې ولري په نښه کړي.
- له څو زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د متن یویو پراګراف په لوړغږ سره ولولي او تاسې د هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ. په پای کې متن یو ځل بیا په لوړغږ سره ولولئ اوویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 145 مخ True or false دبرخې جملې له ځان سره په پټه خو له ولولي او سمې جملې د T په لین او ناسمې جملې د F په لین کې په نښه کړي

| |
|---|
| وروسته له هغوی نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله په لوړغږ سره ولولي او بیا ووایي چې جمله یې سمه وه او که ناسمه هېرنه کړئ چې تاسې له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ او د جملو په ویلو کې مرسته وکړئ.<br>- د 146 مخ د Listen and repeat دبرخې جملې په لوړغږ سره ولولئ او دا ځل له زده کوونکو نه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې جملې په لوړغږ سره ولولي، په پای کې جملې بیا ولولئ اوویې ژباړئ. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د داستان موخه او هدف څه شی و؟ بیان یې کړی:<br>2- ولی پاچا دوه پخوانی نقاشان بندیان کړل؟<br>3- څوک کولای شي دا جمله په پښتو و ژباړي.<br>The third man Painted the king with one eye.<br>4- د هوښیار نقاش د کیسې نه موخه زده کړل؟<br>5- ولی دریم نقاش د پاچا نه جایزه ترلاسه کړه؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسی په نني لوست کې یوه کیسه د هو ښیار نقاش په هکله ولوستله او نوې کلمې مو ولوستلې. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کیسی لنډ مفهوم پخپلو کتابچو کې ولیکی. |

## Unit Fourteen
## Lesson three

**مخونه142-143**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- نابشپړی جملی بشپړی کړي.

2- نوی کلمی سپیل کړي او په جلمو کې استعمال کړي.

3- موزیم او هنر آثارونه ډیر وپیژني.

4- د موزیم په هکله خبرې اترې وکړي

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو له کولو سره وارزوئ:

- د زیرک هنرمند د کیسی مفهوم بیان کړئ.
- د King او Cleaver کلمې په پښتو څه معنا ورکوي؟

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- کوم ډول انځور چه نقاشی شوی وی تر اوسه مو لیدلی دی؟.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Clever artist متن د پخواني متن نه په ګټې اخیستلو سره چې مخکې یې لوستلی و بشپړ کړي. وروسته له زده کوونکو نه په ځانګړی توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله په لوړغږ سره ولولي او تاسې هم له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو نه جمله غلطه ډکه کړې وه د بل زده کوونکي نه وغواړئ چې جمله بیاځلې په سمې کلمې سره ډکه کړي اوویې لولي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 148 مخ د Spelling د برخې د انځورونو سپیلونه د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي. د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي چې: How do you spell museum? دویم زده کوونکي Museum سپیل کوي.
- له زده کوونکو څخه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې د Spelling د برخې فعالیت په لوړغږ سره تمرین کړي. د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي How do you spell museum? دویم زده کوونکي د ټولګی مخې ته راځي د Museum? کلمه سپیل کوي او په تخته یې لیکي.

| |
|---|
| - زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ هغه کلمې یې چې سپیل کړې دي په یوه یوه جمله کې استعمال کړي او بیا دې پخپلو کتابچو کې ولیکي او د جملو لیکلو په وخت کې ټول زده کوونکي وڅارئ او د جملو په لیکلو کې ورسره لازمه مرسته وکړئ. وروسته له زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله یې لیکلې ده په لوړغږ سره یې ولولي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- د Music دکلمې لپاره یوه جمله ولیکي؟<br>2- ستاسې په ولایت کومې لاسي صنایع جوړیږي؟<br>3- د Man, Jail, Angry او King کلمې په پښتو څه معنا ورکوي؟<br>4- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پوری ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>د لرغونو آثارو او لاسی صنایعو په هکله ډیر شیان زده کړل |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 147 مخ د B د برخې فعالیت پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Fourteen
## Lesson four

**مخونه**144-145

**وخت:** يو درسي ساعت(45 دقيقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- محاوره په سمه توګه ولولي او د محاورې مفهوم درک کړي .

2- ساده جملې ولولي او سمې او ناسمې جملې تشخيص کړي.

3- هنري کار وپيژني او له هغې سره مينه پيدا کړي.

4- د نويو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنيو خبرواترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه :**پيانو Piano ګډون Join اضافه Extra سيټ يا څوکۍ Seat

**د لوست د تدريس ميتودونه:** ځانګړی او ډله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

تېر لوست د لاندنيو پوښتنو له کولو سره وارزوئ:

- د پاچا، هوښيار او نقاش کلمو ته په انګليسي کې څه وايي؟
- د Handicraft او Museum کلموته يوه يوه جمله جوړه کړي؟

د انګيزې د پيدا کيدلو او د نوي لوست د زده کړې په هيله لاندې پوښتنې وکړئ.

- د 148 مخ د انځور څخه د انګيزې د پيدا کولو په هيله ګټه واخلې.

- د 149 مخ محاوره په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځير سره غوږونيسي. وروسته له زده کوونکو نه وغواړئ چې محاوره د خپل نږدې ملګري سره په کراره تمرين کړي. هغه کلمې چې په معنا يې نه پوهيږي او يا يې په تلفظ کې ستونزې ولري په نښه يې کړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 150 مخ د Read and choose د برخې جملې له ځان سره په پټه خوله ولولي او د انځورو لاندنی د دوو جملو څخه چې هره يې سمه وي د شميرې څخه يې دايره تا وه کړي: وروسته له څو زده کوونکونه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د انځور لاندې دوه دوه جملې په لوړغږ ولولي او له هغې جملې څخه يې چې دايره تاوه کړې ده نوروته وروښاي.
- له زده کوونکو نه وغواړئ چې د 150 مخ د Learn some thing new د برخې فعاليت د خپل نږدې ملګري سره د ورکړل شوی مثال سره سم په کراره تمرين کړي لومړی تاسې مثال د

| |
|---|
| یو زده کوونکي سره په عملي توګه کار وکړئ چې زده کوونکي په ښه توګه پوه شي وروسته د ټولګي د مختلفو برخو د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې دا فعالیت په لوړغږ سره ولولي او ترسریې کړي او تاسې هم د هغو سره د ځینو کلمو او جملو په ویلو کې مرسته وکړئ. <br> - تاسې کولای شئ چې دا فعالیت په ځنځیري توګه Chain drill هم ترسره کړئ. د مثال په توګه:لومړی زده کوونکي د خپل نږدې ملګري نه پوښتنه کوي I like sweing what do you like? دویم زده کوونکي ځواب ورکوي او دریم زده کوونکي هم همدا پوښتنه کوي په همدې ترتیب فعالیت ادامه پیدا کوي او ټول زده کوونکي په دې فعالیت کې برخه اخلي. |
| **ارزونه:** <br> هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي: <br> 1- د پورتنۍ محاورې هدف بیان کړئ. <br> 2- د She was cooking جمله په درې څه معنا ورکوي؟ <br> 3- آیا نسیمه او انیسه ټولګیوالی وي؟ <br> 4- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:** <br> تاسې په ننني لوست کې یوه محاوره د هنر هکله زده کړه. |
| **کورنۍ دنده** <br> زده کوونکو تـه لارښـوونه وکـړئ چـې د 149 مـخ د Read and choose د برخـې جملـې پخپلـو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Fourteen
## Lesson five

**مخونه 146-147**

**وخت:** يو درسي ساعت(45 دقيقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- د انځورونو نومونه په سمه توګه ولولي او د اړوند و انځورونو سره دې ربط ورکړي.

2- د معما جدول حل کړي.

3- کلمې په سمه توګه سپیل کړي.

4- کلمې په سمه توګه تلفظ کړي.

**نوي**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله اییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو په کولو سره وارزوئ:

- د What do you like? پوښتنې ته ځواب ووایي؟
- نسیمی او انیسی د کومی موضوع په اړه خبری کولی؟

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- ستاسې په ولایت کې کوم لاسې صنعت رواج لري؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 151 مخ د Look and match دبرخې کلمېله ځان سره په پټه خوله ولولي او هغه داړوند و انځورونو سره ارتباط ورکړي. وروسته له زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه کلمه په لوړغږ سره ولولي او انځورېې وښایي. په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو نه تیروتنه وکړه د بل زده کوونکي نه وغواړئ چې کلمې ووایې او انځورېې وښایي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 151 مخ د Fun with words برخه د خپل نږدې ملګري سره ترسره کړي. هغوی ته و وایي هغه کلمې چې د افقی تېر لاندې پرتې دي په معما کې په افقي توګه پیدا کیږي او هغه کلمې چې د عمودي تېر لاندې پرتې دي د معما( کیسی) په جدول کې په عمودي توګه لیکل شوي دي او په همدې توګه ډکیږي، خو ورته ووایئ چې په پنسل سره کار وکړي.
- د معما( کیسی) جدول په تخته رسم کړئ وروسته له زده کوونکو نه د دوه کسیزو ډلو په توګه

وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي یوه کلمه په هغه کې ولیکي، په هغه صورت کې چې یو له هغو څخه غلطي وکړه د بلې ډلې نه وغواړئ چې سمه کلمه ولیکي.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 152 مخ د کلمو سپیل او تلفظ د Pronounciatin د برخې له مثال سره سم د خپل نږدې ملګري سره ترسره کړي.
- د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي How do you spell painting? بل زده کوونکي د Painting کلمه سپیل کوي. وروسته د ټولګي د مختلفو برخو له زده کوونکو نه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې دا فعالیت په لوړغږ سره ترسره کړي.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

1- د Sclupture او Handicraft کلمې معنا کړئ.

2- د Music کلمه څه ډول سپیل کوئ؟

3- د Music او Sewing کلمو لپاره جملې جوړې کړي.

4- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پوری ؤ؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نننی لوست کې د معما یو جدول رسم کړ او حل موکړ.

**کورنۍ دنده** د ملي موزیم په هکله یو متن ولیکئ.

**د معما د شکل او انځور حل**

↓ sculpture, handicraft, sewing

→ museum, music, painting

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | | | | s |
| m | u | s | e | u | m | | h | | e |
| | | c | | | | | a | | w |
| | m | u | s | i | c | | n | | i |
| | | l | | | | | d | | n |
| | | p | a | i | n | t | i | n | g |
| | | t | | | | | c | | |
| | | u | | | | | r | | |
| | | r | | | | | a | | |
| | | e | | | | | f | | |
| | | | | | | | t | | |



# Unit Fifteen
## Lesson one

**مخونه 148-149**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- محاوره په سمه توګه ولولي.

2- کلمې په سمه توګه ولیکي.

3- کلمې په سمه توګه سپیل کړي.

4- د ژویو نومونه په سمه توګه واخلي او له هغوی سره مینه وکړي.

**نوي**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېر لوست د لاندنیو پوښتنو له کولو سره وارزوئ:

- هغه کلمې مو چې په تېر لوست کې مو لوستلی دي ووایې؟
- د Sclupture د کلمې معنا څه ده؟

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- ملي موزیم د افغانستان په کوم ولایت کې موقعیت لری؟
- آیا تر اوسه ملي موزیم ته تللی یاست؟

- د 154 مخ دیالوګ په لوړغږ سره ولولئ او زده کوونکي دې تاسې ته غوږ ونیسي. وروسته دیالوګ معنا کړئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې دیالوګ د دوه کسیزو ډلو په توګه تمرین کړي. وروسته له یوې دوه کسیزې ډلې له زده کوونکونه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او دیالوګ د نقش لوبولو یا Role play په توګه تمثیل کړي.
- د 155 مخ د Look and match د برخې کلمې په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته غوږ ونیسي وروسته زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې انځورونه د اړوندو کلمو سره د پنسل پواسطه ونښلوي وروسته له هغوی څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه کلمه په لوړغږ ولولي او انځورېې وښایي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 155 مخ د Fun with words د برخې کلمې په مناسبو تورو سره بشپړی کړي. په هغه صورت کې چې یو له هغو نه غلطی کړې وي بل زده

| کوونکي ته وخت ورکړئ چې سمه کلمه ولیکي. |
| --- |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- محاوره د څه شي په هکله وه بیان یې کړئ؟<br>2- په موزیم کې کوم شیان ساتل کیږي؟<br>3- د Look and match د برخې د کلمو معنا په لوړغږ کړئ؟<br>4- آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پوری ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په ننني لوست کې تېر لوستونه تکرار کړل. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 155 مخ د Look and match د برخې کلمې په جملو کې استعمال او پخپلو کتابچو کې یې ولیکي |

## Unit Fifteen
## Lesson two

**مخونه 150-151**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- هندسي شکلونه څخه وپیژني او نومونه یې واخلي.

2- شعرونه په سمه توګه ولولي.

3- د شعرونو مفهومونه وپوهیږي.

4- سمې او ناسمې جملې تشخیص او وپیژني.

**نوي**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ښاغلی ښوونکیه! د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو ته تېر لوستونه تکرار کړئ او لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.

- د تېر لوست د محاورې هدف او موخه بیان کړئ؟
- مرغاوۍ، اوښ او زمري ته په انګلیسي کې څه وایي؟

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- یو انځور تیار کړي چې یو زده کوونکی د خپل مهالویش د لیکلو په حالت کې ونیسی.

- د 156 او 145 مخوڅخه د It is time to read د برخې شعرونه په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږونیسې وروسته شعر معنا کړئ او له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې دا شعرونه په لوړغږ سره ولولې او تاسې له هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 156 مخ د A د برخې جملې د دوه کسیزو ډلو په توګه پخپلو کې ولولي، وروسته جملې معنا کړئ او د مختلفو دوه کسیزو ډلونه وغواړئ چې د ټولګی مخې ته راشي او د لومړي زده کوونکي جملې ولولي او دوهم زده کوونکي یې وژباړي اوویې وایې.
- د 157 مخ د B د برخې جملې په لوړغږ ولولئ او زده کوونکي دې تاسی په پټه خو له غوږ ونیسې. وروسته زده کوونکو ته دنده ورکړي، چې په ځانګړي توګه جملې ولولي او د سمې

| جملې د شميرې نه دايره تاوه کړي، وروسته له څو زده کوونکو نه پـه ځـانګړي توګـه وغـواړئ چې د انځور لاندې دوه دوه جملې په لوړغږ ولولي او هغه جمله چې ګوی يې تری تـاوه کـړې ده وښايي. |
| --- |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې بايد له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- تراوسه څو ډوله هندسي شکلونه پيژنئ نومونه يې واخلئ؟<br>2- مثلث څو ضلعې لرئ ووایاست.<br>3- دايرې ته په انګليسي کې څه وايي؟<br>4- آيا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نن‌ني لوست کې تېر لوستونه تکرار کړل. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د دې لوست شعرونه په خپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit Fifteen
# Review
# Lesson three

**مخونه 152–153**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- د تیرو لوستونو تکرار.

2- وخت وپوهيږي اوويې ليکي او تکرار کړي.

3- کارونه وپيژني او تکرار کړي.

4- د انځورونو نومونه سپيل کړي او تکرار کړي.

5- رنګونه وپیژني او نومونه يې په سمه توګه ولیکلای شي او تمرین کړی.

**نوي**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

تېرلوست په لاندنیو پوښتنو سره وارزو:

د دایرې د شعر په لوړ غږ ولولی.

- څو ډوله هندسي شکلونه مو په تېرلوست کې لوستلي دي نومونه يې واخلئ.

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- د Time کلمه سپیل کړئ؟
- آیا په انګلیسي کولای شئ و پوښتنئ چې ساعت څو بجې دی؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 159 مخ د Writing برخه په ځانګړي توګه ترسره کړي او ?What time is it پوښتنې ته د انځورونو له مخې سم ځواب ولیکي. وروسته له زده کوونکو نه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې یو له بل سره سوال او ځواب وکړي. د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي ?What time is it او دویم زده کوونکي چې دځواب جمله لیکلې ده هغه دې ولولي په هغه صورت کې چې دویم زده کوونکي ځواب ورنکړای شو له بل زده کوونکي نه وغواړئ چې سم ځواب ووایي.
- د 158 مخ د Writing د برخې د B فعالیت په سمه توګه زده کوونکو ته تشریح کړئ او له هغوی نه وغواړئ چې د هر انځور لاندې د ورکړل شوي مثال په توګه یوه جمله جوړه کړي او

| |
|---|
| دا کار له زده کوونکو سره مرسته کوي چې زده کوونکي د جملو په جوړولو کې نور هم بلد آشنا شي. وروسته له زده کوونکونه په ځانګړي توګه وغواړئ هغه جملې یې چې لیکلې دي په لوړغږ ولولي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 159 مخ د Spelling برخه د دوه کسیزو ډلو په توګه پخپلو منځونوکې داسې تمرین کړي د مثال په توګه: لومړی زده کوونکي پوښتنه کوی؟ How do you spell....? او دویم زده کوونکي د نوموړي انځور نوم سپیل کوي چې دا کار له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د کلمو سپیل په ښه توګه زده کړیي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 159 مخ دPlay with letters د کتاب د لارښوونې سره سم د مثال په ډول جوړ کړي وروسته له زده کوونکونه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د ټولګی مخې ته راشي ،یوه یوه کلمه د تختې پرمخ ولیکي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه په سمه توګه ونه شوای لیکلی. د بل زده کوونکي څخه وغواړئ چې سمه کلمه ولیکي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- آیا دا پوښتنه کولای شئ چې ساعت څو بجې دی؟<br>2- اوس ساعت څو بجې دی؟<br>3- آیا د Yellow کلمه سپیل کولای شئ؟<br>4- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پوری ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په نن‌ني لوست کې تېرلوستونه تکرار کړل. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کارونو نومونه یې چې په دې لوست او تېرو لوستونوکې لوستي دي پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit Fifteen
## Review
## Lesson four

**مخونه**155-154

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- محاوره په سمه توګه ولولي.

2- د محاورې مفهوم درك او پرې پوه شي.

3- پوښتنو ته سم ځوابونه ووايي.

4- هنر وپیژني او هغې ته اهمیت قایل شي.

**نوي**

**د لوست د تدریس میتودونه:**دوه کسیزه

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ښاغلی ښوونکیه ! د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ چې زده کوونکو تېر لوست تکرار کړی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.

- د Purple کلمه سپیل کړي؟
- د Teacher کلمې ته یوه جمله جوړه کړي؟

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- د افغانستان ملی موزیم چیرته پروت دی؟
- آیا تر اوسه ملی موزیم ته تللي یاست؟

- د 160 مخ دیالوګ په لوړغږ ولولئ او زده کوونکي دې تاسې ته غوږ ونیسي. وروسته دیالوګ معنا کړئ او زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې دیالوګ د دوه کسیزو ډلو په توګه پخپلو منځونو کې تمرین کړي. وروسته د مختلفو دوه تنو زده کوونکو نه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او دیالوګ د Role play د نقش لوبولو په څیر تمثیل کړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 161 مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره تمرین کړي. د مثال په توګه: یو زده کوونکي پوښتنه کوي او دویم زده کوونکي د محاورې نه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکوي. وروسته د ټولګي د مختلفو برخو له زده کوونکو نه د دوه کسیزو ډلو په توګه وغواړئ چې دا فعالیت په لوړغږ سره سرته ورسوي.

| |
|---|
| - د 161 مخ د Listen repeat د برخې کلمې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکونه وغواړئ چې تاسې ته غوږ ونیسي.<br>- کلمې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ او دا ځل له زده کوونکو نه وغواړئ چې له تاسې سره یې یو ځای تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې کلمې په لوړغږ ولولي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- په لنډ ډول د محاورې هدف بیان کړئ؟<br>2- نرګس څه شی درته ګران وه.<br>3- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پوری ؤ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسی په نن‌ني لوست کې تېر لوستونه تکرار کړل. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته دنده و سپارئ چې د 161 د Ask and answer د برخې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي او پخپلو کتابچو کې یې ولیکي. |

## Unit Fifteen
## Lesson five

**مخونه** 156-157

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي:

1- جملې سمې ولولي او سمې جملې وپیژني.

2- تیر لوست مرور کړي.

3- کلمې د انځورونو سره ربط ورکړي.

**نوي**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ښاغلی ښوونکیه! د دی لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ چی زده کوونکو د تېرې ورځې لوست تکـرار کـړی دی نو لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

- د تیری لوست د محاوری اصلی هدف بیان کړی.
- د How is the weather in Kabul? پوښتنې ته ځواب ووایې؟
- ماریا د بدخشان آب و هوا څه ډوله لیدله.
- د I love skiing? جمله په پښتو معنا کړي؟

د انګیزې د پیدا کیدلو او د نوي لوست د زده کړې په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا د لرغونو آثارو او لاسي صنایعو سره بلدتیا لرئ؟

- د 162 مخ د Read and choose د برخې جملې په لوړغږ ولولئ او زده کوونکي دې تاسې ته غوږ ونیسې. وروسته له زده کوونکو نه وغواړئ چې په دوه کسیزو ډلو کې جملـې ولـولي او سم ځواب د انځورونو له مخې وټاکي وروسته له څو زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د انځور لاندې دوه دوه جملې په لوړغږ ولولي او هغه جمله چې یې په نښه کړې ده وښایي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 163 مخ د Look and match کلمې له ځان سره په پټه خو له ولولي او هغه داړوندو انځورو نو سره ارتباط ورکړي. وروسته لـه زده کوونکـو نـه پـه ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه کلمه په لوړغږ ولولي او انځورېې وښـایي. پـه هغـه صـورت کې چې یو له هغه څخه غلطي وکړي بل زده کوونکي ته وخت ورکـړئ چـې کلمـه ولـولي او انځور یې وښایي.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 163 مخ د ?What you learned this year د ځانونو سره فکر وکړي او خپلې ذخیرې په شفاهي توګه بیان کړي.

**ارزونه:**

هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

1- د The Mountain is full of wood جمله معنا کړئ؟

2- تاسې د پنځم ټولګي د کتاب کوم نوي شیان زده کړي هغه بیان کړئ؟

3- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې ؤ؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نني لوست کې دتېرو برخو لوستونه تکرار کړل.

**کورنی دنده**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ هغه شیان مو چې په پنځم ټولګي کې لوستلي دي په رخصتیو کې یې تکرار کړئ.